# قوله تعالی الرحمن علی العرش استوی

بتوفیق خدای زمین و زمان و [illegible] در کن نگاشته کتاب جامع حقایق و نصایح ...




حسب فرمایش تاجران با انصاف محمد اکبر و میا محمد صاحب نفعهما الله تعالی فی الدارین


در مطبع روافی باهتمام میر محمد طبع
فادهلے معظم شد

رب یسر | بسم الله الرحمن الرحيم | وتمم بالخير

کوره هسې کړ دکار دے رب زما
جه صاحب دے کل اختیار دے رب زما

هکې بزرګواران چه ځوك ئې وائې
هم و بزرګوار دے رب زما

نړئ هیځ حاجت پرجا باندې موقوف دے
دَ هیچا منّت بار دے رب زما

له نیستئ دهستې صورت پیدا کا
هسې رنك پروردګار دے رب زما

هم صانع دے دجمله و مصنوعاتو
هم سامع دهر ګفتار دے رب زما

جزئې هیڅ نه مثل نه مثال شته
دهغو عطر و عطار دے رب زما

هر تعمیر چه د دنیا و دعقبی دے
هم وار و معمار دی رب زما

خوانده د نا نویسو صحیفو دے
دانده دهر اسرار دے رب زما

که ظاهر دے که باطن دے که مابین دے
هم و خبردار دی رب زما

که پیدا که پوشیده دی که اوسط دے
هم و وقوف دار دے رب زما

شریك نه لري په خپلے بادشاهئ کښې
بې شریك شهریار دے رب زما

هسې نه چه واحد ئې ده له عجزه
په واحد وجود بسیار دے رب زما

حاجت نه لري دهیچا و یاری ته
له هغو سره چه یار دے رب زما

څه حاجت دی چه و بل خوا ترئې غوارم
په خپل کور کښې هکنار دے رب زما

هیڅ تغیر او تبدیل نه لري رحمانه
تل ترتله برقرار دے رب زما

[illegible] د محمّد نه وی پیدا
کل جهان د محمّد په رو پیدا شه
نبوّت په محمّد باندې تمام شوه
نور هاله د محمّد وه پیدا شوے
څه شو که صورة ئی پیدا شوے آخرین دے
خدائی مه ګڼه بیشکه چه بنده دی
که نبی دی که ولی دے که عاصی دے
چه ئی دین د محمّد دے قبول کړی
محمّد د ګمرهانو رهنمای دے
که د رنړاده پیروی د محمّد ده
محمّد د بیچاره ؤ چاره ګړدی

پیدا کړی په خدای نه وه دا دنیا
محمّد دی د تمام جهان آبا
نشته پس له محمّد انبیا
چه بوی نه وه د آدم او د حوا
په معنی کښې اوّلین دے تر هرچا
نورانی کل واړه صفت دے په رښتیا
محمّد دے د همه واړو پیشوا
جنّتی دی که فاسق دے که پارسا
محمّد دے د رنډو د لاس عصا
ګڼه نشته په جهان بله رڼا
محمّد دے هر درد منو له دوا

زه رحمان د محمّد د درخاکروب یم
که م نکه خدائ له دی دره جدا

هوښیار مه ګڼه هوښیار دے د دنیا
روښنائی په هغو زړو نو ده حرام
پوچ ګوئی ده چه ئی اهل دے دنیا کا
د طفلانو په خیر واړه خاکبازی کا
واړه ړکی خولی د پیو هلکان دے
همیشه به لی وقوفا وبی شعور وے
د شرابو هم لاهمه مستی نه وے
هر بیمار له دارو جهان نشته دے

بیوقوف دے وقوف دار دے دنیا
چه په کښینی ګرد غبار دے دنیا
هر کلام وهر ګفتار دے دنیا
هرچه کاندې کاروبار دے دنیا
کاردیده او پخته کار دے دنیا
چه مخمور وی په خمار دے دنیا
لکه مست وی خمرخوار دے دنیا
دارو نه لری بیمار دے دنیا

تن پرور بلبل د عیش کاندې کلو پروانه لره پداو ر خاکه از را
کړمی نه آزمئ په ویاړه د ګوسترکو می د عشق په مینځ اند کښې د مجاز زرا

دهر سوی علاج و نشی په جهان کښی — مګر سوی پر شرار د دی دنیا
هر چه واچوی داور ته واړه سوزی — موږ به نه شی طلبګار دی دنیا
ګرفتاری همیشه په غم کښی ډوب وی — هیڅوک مه شه ګرفتار دی دنیا
تل به پروت وی په ظلمت او په تورتم کښی — چه اسیر وی په ګفتار دی دنیا
خه وبت و ته سجده خه و دنیا ته — بت پرست دی پرستار دی دنیا
په مسلم وکښی خاصه مسلم هغه دی — چه ئی وشلاوه زنار دی دنیا
تن ئی پاتی شی بی سره سر ئی لاړ شی — سردار ګله د سردار دی دنیا
زوی لونړه یتیمان کا خپنی د مړ وی — بی وفا دی مورو پلار دی دنیا
همیشه بڼی بو سپنه د غم په سر وی — چه په سر ئی وی دستار دی دنیا
واړه غم دی که ئی پیږی که ئی پلوری — نور څه نشته په بازار دی دنیا
همه واړه ئی تیکان د تکی کاندی — فروشنده او خریدار دی دنیا
په دنیا به مینه نه کاندی هیچری — چه خبر وی په اضرار دی دنیا
چه نظر د چا په دین او په ایمان وی — هغه نه کا انتظار دی دنیا
لوی هلاك ئی همه واړه اغیاران دی — یار د چیری په د یار دی دنیا
چه پیدا شی هګی واړه فنا شی — راشه وګوره ناتار دی دنیا
چه ویرین لګوهی او له ګوهنک — هغه نه دروی په کار دی دنیا
آشنایان ئی همه واړه مکاران دی — خه ویسا دی په مکار دی دنیا
هر سړی له چه ور شی خنی دروی — عالیس لی د رفتار دی دنیا
په یوه ګړی بهار وی بیا خزان وی — بقا نه لری بهار دی دنیا
که هزار هزار بنیتی ور ته تدګیر دی — لی بنیاده دی دیوار دی دنیا
که د اسپو حصار ترخان چا پیر کړی — بنیبنه وګړه دیوار دی دنیا

چه نظر له ناتوانی وچا ته نه کا دهغو بیمارو سترګو نازو نیازرا — چه م نوی سر کوزی چا ته بی بشکلیو له دولت د عشق هسی کبر و نازرا

لکه سوری د آفتاب په مخ کښې ګرزي — نشته هیڅ قرار دی دنیا

هیڅ ګمان د بهتري ورباندې مه کړه — کهتري ده وار په وار دې دنیا

بی مقراضه غوڅوي د سري عمر — هم داليل وهم نهار دې دنیا

پس له مرګه به حساب له سره غوښتي — په انداز او په مقدار دې دنیا

عاقبت خو به يو موټی شي د خاورو — ګلعذار او ګلرخسار دې دنیا

برابر به له ګدای سره پاسي — شهزاده او شهریار دې دنیا

پاس به داغ وی د لئيم په سينه باندې — هم درهم او هم دینار دې دنیا

د قانع تر قناعت صدقه شه — هم دنیا او هم دینار دې دنیا

پس له مرګه به هر واره مظلوم وي — ظالمان او ستمګار دې دنیا

تر قیامت د غم لس او د غم ښار دې — پوره نه کړه هیچا شمار دې دنیا

چه ایام پر د کفن او غسل ورشي — بی پرده شي پرده دار دې دنیا

په تخته باند بیرون شي له حجابه — شرمناک او شرمسار دې دنیا

تر هرچا به پیغمبر مخه وه پېره — که څه قرب وي یا وقار دې دنیا

یو فساد یې بیان په رحمان نه شي
فسادونه دي بسیار دې دنیا

هغو بیامومي سعادت په دا دنیا — چه ئې وکړه قناعت په دا دنیا

نه ملکو نه د سليمان په هزار کاله — نه یوه کړي طاعت په دا دنیا

ازل خدای په یاد دوا ولیتر د — نه درست جهان دولت په دا دنیا

په دنیا کښې لوټ هغو عالمو وکړه — چه ئې وکړه عبادت په دا دنیا

که نعمت د خو طاعت او عبادت دي — ګنړه نشته بل نعمت په دا دنیا

که نعمت او مشقت د خود دین دي — پکار نه دي بل محبت په دا دنیا

اضطراب یم د حرص کړه له زړه لرې — قناعت قوي لنګر دې د جهاز دا
کړم نه فاش و سر زید و عمر ته — خپل زانو لکه نرګس محرم د راز دا

بلی له خدایه هر چه دی همه فانی دی — که لذت ذی کم زینت په دا دنیا
که بادشاه دی آخر خاور ولره درومی — څه غروری څه حرمت په دا دنیا
تر هغه به بل نادان په جهان نه وی — هر چه غواړی فراغت په دا دنیا
ته چه څو وقت فرصت په دنیا غواړه — چا موندلی دی فرصت په دا دنیا
عمارة په سر د ریگ روان کاند — هر چه کاند عمارت په دا دنیا
د مستانو تر لغزش څه کم نه دی — د سړی استقامت په دا دنیا
هر روند چه د مرده په قبر ور شی — بس که همه نصیحت په دا دنیا
په روانوا و بوراشه عمر گوره — دیر دی همه اشارت په دا دنیا
دا پاخه پاخه سرایونه محلونه — خو به وران شی عاقبت په دا دنیا
ور به ستوگی د آسمان څه هسی نه دی — چه څوك پریږدی سلامت په دا دنیا
هر چه راشی همه واره ځنی درومی — مسافر دی هر صورت په دا دنیا
ریاضت په قیامت نشی مرد هغه دی — چه ئی وکړه ریاضت په دا دنیا
هم په دا خوی او خصلت بر صبا یاسی — خدای مه کړه څوك بد خصلت په دا دنیا
هم هغه به خرمن وی پس له مرگه — هر چه کاند زراعت په دا دنیا
که هغه جهان په دا کښی لیده نه شی — نه ئی وینم علامت په دا دنیا
په قیامت کښی بنه تو بنه به خجله نشی — ما لیدلی دی قیامت په دا دنیا
امانت به د لحد په میان کښی پروت وی — هر چه اوسی امانت په دا دنیا
نیک عمل حضور دی طاعت بویه — چه حاصل کا څوك جنت [illegible]
نیک کردار هم نیک عمل هم نیکخوی نه — هم جنت دی هم راحت په داد
ضدیت د سړی عمر په عذاب کا — بکار نه دی ضدیت په دا دنیا
لاس په سر په سینه ایښی و هر چاته — هم د غه دی شرافت په دا دنیا

خو به گورم د قیامت و خوشوتر د انجام په دم قدم کښی د آغاز را د حمید محمود د ایشه په مینه کمینی لوه کمال څما ایاز را

کہ بلندہ مرتبہ دچا پکاروی
بل ارمان بہ لہ جهانَ یو ورپہ شی
دهغہ جهان سودا وارہ دلی شی
کہ طالع دسری نہ وی جاروتلی
نیک دنیکو سرہ بویہ بد لہ بدو
ولایت دے خدای هغولرہ ورکری
کہ تمام دنیا وارہ سرہ یوشی
کہ څوك مرد دے څو هغہ دے پہ دنیا کښ
چہ رغبت ئی دجملہ وخطا سر دے

لوی مقام دے عدالت پہ دا دنیا
مکر مهر ومحبت پہ دا دنیا
کہ څوك کاندِ تجارت پہ دا دنیا
هیڅ پټ نہ دے حقیقت پہ دا دنیا
کہ څوك غواړی ولایت پہ دا دنیا
چہ ئی ورك کړ سکونت پہ دا دنیا
نور بہ نکا چیرِ قسمت پہ دا دنیا
هر چہ نہ لری حاجت پہ دا دنیا
څوك بہ څہ کاندِ رغبت پہ دا دنیا

بہ رحمان باندِ دا عمر هسی تیر شہ
لکہ تیر شی یو ساعت پہ دا دنیا

بنہ دہ بنہ دہ دا دنیا
مذمت د دنیا مہ کړہ
د دنیا بہ بازار کیږے
پہ دنیا کښ دے یو حکمت دے
کہ تر سرئی صدقہ کړی
کہ غلیم لرہ ئی ورکړی
کہ پہ داور باندِ ئی کیږدے
کہ ئی توئ پہ صحرا کړی
کہ ئی نہ رکړ وِ ویر تہ
څو څوندے ئی پہ جهان کښ

چہ تو بہ دہ دعقبا
وارہ پند کړہ دا وینا
د هغہ جهان سودا
ورشہ و پوښتہ حکما
رفع و دفع کا بلا
غلیم دوست کا پہ هوا
بوی دعود وکا پیدا
بنائستہ کاندِ صحرا
خوشحال د روحی پخندا
یادوی دِ یہ دعا

ترخاوره نه رسنا څه ده دا دنیا باقی شو ټول لاهم چا څه ده دا دنیا
ډیره پیر غېږ لیکې پروتر طلب خاوری څر لولیا او بے حیا ده دا دنیا

دحاتم پہ خیر دِ ستائی ۔ خطاب درکا د سخا
سخی هر یو دحذا دوست دے ۔ وَلَوْکَانَ فَاسِقًا
هر بخیل دِ حذا دښمن دے ۔ وَلَوْکَانَ زَاهِدًا
دنیا کښت داخرة دی ۔ داخبره ده رښتیا
د دنیا طالبان ډیر دِ ۔ کړی مومې څوك لږ چا
ولی مرد پہ کښ هغه دے ۔ چه سخی وِی هم پارسا
پہ دنیا کښ بدی نشته ۔ کہ بدی ندوِی لہ تا
دنیا بحر دے بهیرِی ۔ ائینی غوښنی صفا
خیل خیل مخ پہ کښ لیده شے ۔ کہ څوك زشت وِی کہ زیبا
هم خطر پہ کښ د سرشته ۔ هم گوهر دے بے بها
وفادار لره وفا شوه ۔ جفاکار لره جفا
لہ یوه مخه ئی درد وِ ۔ لہ بل مخه ئی دوا
چرته ښخوند کاندِ د زهرو ۔ چرته ښخوند کا د حلوا
کار هم واړه موقوف دے ۔ د سړی پہ مدّعا
سالکان دِ ننداره چی شے ۔ د خپل ځان پہ تماشا
هر چه کا هغہ بہ مومی ۔ دنیا ځای دے د جزا
لکه د هسے بہ پاسے ۔ کہ نادان وِی کہ دانا
کہ دانائی وپوهیږه ۔ پہ رښوا یه ښاروا
فتوی وِنیسه پہ مخ کښ ۔ پسی منځ کړه پہ تقوا
دنیا نہ ده هغہ دین دے ۔ چه له لهی وی سوا
او طاعت و نه ولاړ وے ۔ همیشه تږے ملا

کہ ظاهر کښلی زیبا لیده شی خو پر باطن توره بلا ده دا دنیا
پر دنیائی دچا کار نہ پوره کیږی دآسمان برق وبریښنا ده دا دنیا

له حراموئی پرهیز وی — هم مشغول په پنج بنا
کلمه ئی وی قبوله — هم په جهر هم په خفا
د دنیا د کار د پاره — فرض نمونځ نه کاندی قضا
هم صایم وی د رمضان — هم زکوة کاندی ادا
که ئی توان د حج رسیږی — حج هم وکا پسی بیا
دا پنځه بنا د دین دی — چه بیان ئی وکړه ما
چه ئی یون په دا طریق وی — هغه کس دی اولیا
که ئی مال او دنیا ډیر وی — هیڅ دی نه کاندی پروا
دنیا بده د هغو ده — چه ئی کسب وی ریا
یا ئی کسب د ریا وی — یا ئی وکتهی په غلا
یا ئی بوله کا په ظلم — یا د خمرو په سودا
یا ئی وړ کا په شرابو — یا ئی ور کړه په زنا
یا ناحق خونونه کاندی — یا مالونه خوری د چا
عبادة کا په ځان فرض — د بادشاه او د اُمَرا
حق باطل کا باطل حق کا — په سبب د روی ریا
نه ئی ویره وی له خدایه — نه ئی شرم نه حیا
د بوی کیږی د پاره — هزار خونی کا بیدریا
همیشه ئی له ستم دی — واره خلق دی په غوغا
کوشش او هوش ئی هر کوزی — د مظلومو په زړا
د فرعون په خیر به ناست وی — بی پروا لو کبریا
تخانی وتړی ئی غم وی — ومسجد و تړئ شا

هیڅ احسان د آشنائی په کښې نشته که آشنا ده نا آشنا ده دا دنیا زړه په زړه برئی ولی له کمره له هر چا چه خوا بخوا ده دا دنیا

اختلاط کاله بدانو هیڅ ئی نه وی په خاطر کښې
له نیکانو وی جدا تولا او تمنا

و رحمان ته پښېمانه مه کړې
خدایه هسی رنګ بلا

راشه مه کوه له چا سره جفا
لوړ ژوندون دی ضایع کیږی بیوفا

په دنیا کښې هیڅوك نه دی پاتی شوی
واړه تلونی دی که ننی دی که صبا

دا یاران چه نن وتاوته جلوه کا
په دوه ورځې پس به واړه شی فنا

که دیدن دی د دوی خوښ وی ورته ګوره
چه فنا شی بیا به کله شی پیدا

د خزان پاڼی چه تیلی شی له ښاخه
په حکمت به ئی پیوند نه کا حکما

چه پو مکه خاشکی پریوزی له آسمانه
بیا له ځمکی ختی نه شی په سما

ګمان مه کړه چه به ستر ګو له وړ شی
هغه اوښی چه له ستر ګو شی جدا

دا په هره ورځ چه خیژی بلا بلا نمر دی
هر چه پریوزی هغه نه شی ختی بیا

که جنت په زهد نه دی بی له فضله
هر سړی د خپله غاړه که ادا

که د نفس د پاره سل محنت وکړی
بو محنت به د پکار نه شی فردا

که تمام جهان په خپله وخوری
یاد به نشی په درود او په دعا

که یوه دانه داوړه په لاس ورکړی
هم دغه به د تو بنه شی د عقبا

که یو خاشکی او به تږی له وور کړی
د دوزخ او سنا مینځ به شی دریا

که یو ځله سر د خدای په لوری ټیټ کړی
په قیامت به سر بلند شی تر هر چا

بازار دی که څوك سود و سودا کاندی
په هغه جهان نه سود شته نه سودا

آشنایان که څوك پوهیږی نن ئی وقت دی
چه زاریږی یو آشنا تر بل آشنا

که ژوندون دی هم خو دا دی په جهان کښې
چه له چا سره تیریږی په خندا

پیو ځای تهیکا نه هیڅ نه شی لکه سوری هغه داده دا دنیا
تل پر خان پوری د خپلو طالبانو مسخری کا په خندا ده دا دنیا

خدایا مان راکړې لږ دې هسې زندګی
زهر بند دې چه په صلح په صلاح وې
نفس په خاورو په خس ډك بند وې يغه
ملا ما ته په محنت په مشقت بند ده
ړوند بهتر دی چه خد نه وینی په ستر ګو
ګنګ بند دې چه بی کام وبی زبان وې
کوڼ بهتر دې چه هیڅ نه اوری په غوږو
دیوا ود دکه پخوا د ړ شی خو بهتر دې
رجا هل د همدمی به بهتر وې
که مشکل دې خو د ړ دونو ړ غول دې
سود او زیان د دنیا واړه سهل کار دې
چه د وروا و د عزیز په زړه آزار شی
کاه د نور ور ضا بو یه کاه خپله
بنده خواره چه یوئ خور بل ورته ګوری
چه بنا دی ئی یو زمان وې عمر ترتله
لکه خان هسې وبل وته نظر کړه
منصفانو لره بو یه چه انصاف کا
د سړی په خاطر هرڅه ګرزی
دینداران د وخپل دین وته نظر کا
خدای د ننګاني خطا د چا له لاسه
هسی نه چه سړی واړه سره سم دی

چه ته بد وائی له بله بل له ډیر تا
نه شکر دې په فتنه او په غوغا
نه د غم په خاورو خس پخه حلوا
نه حرامه همیانی د چا تر ملا
نه چه سترګی په پردی حرام کاوا
نه چه ژبه شی په بد ویل ګویا
نه چه غوږ کا به په بد ویل شنوا
خدای د به سړی د ړ نه ولی پخوا
که له چا سره همدم وی اژدها
سهل کار دې سود او زیان د د دنیا
خدای د نه کا څوك په سهل کار رسوا
حاصل مشر هغه خپله مدعا
به کار نه ده همیشه خپله رضا
خواره نه دې هغه زهر دی ګویا
د غم هسی چار دې نه کانه دانا
لکه ستا دی هسې خان د دهر چا
نه چه نغوته کا د حرص او د هوا
نه چه هم واړه وکښی روا
څوك فکر و نه د صواب کا څوك خطا
خه نسبت دې د خطا او د عطا
څوك اعلی دې څوك اوسط څوك ادنا

لہ سودائی سود من شوی هیڅوک نه دی جو فروش ګندم نما ده دا دنیا بیهوده ئی زړه تړی په دنګ دنګ پوړی ده کړی سلیمن ورا ده دا دنیا

دهر چا حرمت په خپله اندازه وي — نه چه خاى د نفر موي امرا

زه رحمان شکوه شکایت له هیچا نکوم
نشته بل دوست او دشمن خما بې تا

کډ خوك يار په جهان غواړي يار دے دا — يار دے دا که د جهان سنګار دے دا

خيال د زلفو ئې خما تر زړه چاپير شه — يا تر ګنج چاپير شوے مار دے دا

وا جهان دے خداى له عشق پيدا کړي — د جمله و مخلوقاتو پلار دے دا

تر عشق غوره بل هيڅ کار په جهان نشته — تر هر کار و نو غوره کار دى دا

بل بلبل به د ګل نوم اخستي نه وه — که خبر وے چه ګل نه دى خار دے دا

بيا راتلل و دے جهان ته بل وار نشته — بل وار نشته بل وار نشته وار دے دا

د حباب عمر ته و ګوره چه څه دے — که څوك شمار کا نه د عمر شمار دے دا

دمجنون صورة په زړه کړه رحمان ګوره
ستا په عشق کښې هسے خوار و زار دے دا

چه له تاسره په سر کاندې سودا — بل به نه وي هسے ماغونده شيدا

نه به ماغونده شيدا وے په جهان کښې — نه به تاغونده دلبر وشي پيدا

ما د ستا جور وجفا دے قبول کړي — ولې نه شي د تهايه خاى خندا

بې د ستا له مخه کون دے که مکان دے — بنه توبنه م نه پيد شي نه پيدا

جدائي به د هيڅ رنګ قبول نه کړم — تو مړ نه شے روح کالبوت سره جدا

لکه ورستو مقتديان وړاندې امام وي — هسے ما په تا پسې دے کړي اقتدا

زه يونه يم د ستا جهان په تامين دے — که پادشاه دے دے د هر که ګدا

کشکې خط د اماني وماله را کړے — چه له ما سره وعده کړې د فردا

زه په خپله يه تا نه يم مين شوے — ستا له لوريه په ما شوي دے نا

زه په تا بانډې مين يم له ازله
چه د ستا د عاشقۍ په تيغ شهيد شے

نه چه کړې م نن ورځ دې ابتدا
د رحمن غاړه به هله شي ادا

د رحمان ودېره رنګ وته نظر کړه
چه مدام په تا پسے کاندې ژړا

که مين ئې په خپل يار پسې رښتيا
په وفا د دلبرانو غلط مه شه

د خوبانو طائفه ده هسے شوخه
د دېر نازه د دېر کبره له سببه

دل او دين په نيم نګاه د سره يوسي
بل به هسے سرګودان په جهان نه وے

نه چه ژغوره سر او مال په عاشقۍ کښه
د جنت تر حور و تېر شه که يار غواړے

د ساقي د لاسه هسے باده نوش کړه
چه لئ کسب عاشقي شوه د دلبرو

آواره کړه اوّل دين پسې دنيا
دغه قوم دے بيوفا او کبريا

چه غوږ نه باسي د چا په واويلا
عمل نه کا په ګفتار د اولياؑ

نه ئې وېره له چا کيږي نه حيا
يا عاشق دے يا آسمان دے يا آسيا

عاشقي دا هسے چر ده ويريا
خداى د نقد د چا نه کاندې نسيا

چه د غوږ کاله ذره خيره دريا
نظر نه کاندې په کسب د کيميا

يو ګفتار ور له بس کاندې رحمان
څه به هر ساعت پسته کړې بيا بيا

عاشقي م په زړه وکړه ګذر بيا
که دفتر د خپل قسمت م په خپل لاس دے

ملا نوم د عاشقۍ اخستی نه وه
پس له مرګه به ئې بيا تر تا قربان کړم

د هجران محنت م واړه له زړه هير شه

بيلتانه م لښې بلا کړې په سر بيا
ما به ستا له غمه وران کړه دا دفتر بيا

جدائي د را نه جمع کړه د البشکر بيا
که صورت م خداى پيدا کړه په محشر بيا

چه م وليده په سترګو ستا بشر بيا

اوّل ولوله آيات دلر تنا هاله لاف د محبت کړه د آشنا    خودې سر په تنه پورے مال په ځای نشته چے درکښېږم کړ دکے وينا

| | |
|---|---|
| چه آسمان ئې مخ پټ کړي په سحاب وه | خدای و ما و ته حرکند کړه هغه نمر بیا |
| چه رقیب راته ترلی په زنځیر وه | خپل حبیب را باندې پرانست هغه در بیا |
| په یو نظر ئې زړه راښخه یو وار | خدای دې خیر کا چه لا و کا یو نظر بیا |

په وصال ئې منت بار او سه رحمان
په صدف کښې دخل نه وي د ګوهر بیا

| | |
|---|---|
| دل او دین م کړه په هغې ترک فدا | لا ئې نه حساب بووي دخان بها |
| دښائست صفت ئې څو کړم حیران یم | چه هیڅ رنګ ئې موندة نه شي انتها |
| د صورة له عیب هسې پاکیزه دی | لکه ذات دو لیښتر نښتر دے پرها |
| کړی مخ په زلفو پټ ویباک ئې نښته | تل په ګنج باندې پراته وي اژدها |
| لکه نمر هسې جلوه کا په شفق کښې | چه په سر کاندې اوږي د سوها |
| نه پوهېږم چه په کومه لار درومم | چپ او راست م رقیبان دے ډهرلها |
| خدای دې هسې تنها نه کړ څوک په غم کښې | لکه زه د یار په غم کښې یم تنها |

همیشه د بیلتانه له غمه لولم
زه رحمان نعوذ بالله منها

| | |
|---|---|
| ترحد تیر شوه په یار پسې ژړا خما | نه کړو هیڅ پېړي ژړا پسي آشنا خما |
| کړم هره وینا درشي پا ګوهر شي | سنا دغوږ نه ده لایق وینا خما |
| په نارو په ما بیا د کړه کراوده وے | بار ویښ راته او ده شه د لوبا خما |
| زه مکتوب غوندې په ښه خوله ګویا یم | خاموشي خما تیر په ي ترغوغا خما |
| کښت د عشق په تو ده مزکه آسان نه دے | سمندر بو په چه زیست کا په صحرا خما |
| د یار نه دے چه هجران له ما نه بیل کړ | روح خما دے چه له تن دے جدا خما |
| زه رحمان بې خیله یاره هیڅ نه غوارم | که قبول وي د خدای په در دعا خما |

چه منظور ئې د ګوتو په نوکو رنګ کړي [illegible] لمبون شته د حنا
چه ئې زړه د عشق په تیغ سوری سوری سي لا علاج کا ئې په ... لکه سر دا

عالمان دی روښنائی د دی دنیا … عالمان دی د تمام جهان پیشوا

که څوک لار غواړی خدای و رسول ته … عالمان دے د دی لارے رهنما

کیمیاګر که د کیمیا په طلب ګرځی … همه می د عالمانو ده کیمیا

په مجلس د عالمانو به سره زر شی … که څوک کاڼی وی که لوټه د صحرا

جاهلان دی په مثال د مردګانو … عالمان دی په مثال د مسیحا

چه مرده ئی له نفس ژوندے کیږی … عالمان دے واړه هسے اولیا

هر سړے چه رتبه نه لری د علم … سړی نه دے خالی نقش دے ګویا

زه رحمان حلقه په ګوش د هر عالم یم … که اعلی دے که اوسط دے که ادنا

چه ئی واده کاڼه په ډول او په سرنا … بیا پروائی زمانه دویرو ینا

که م هر څو دلبری او دلجوئی کا … زه پوهیږم د خپل یار په استغنا

په یوه ګړئی م یار هم مرآشنا شی … بیا م بله ګړئی نه ګڼړے آشنا

دا زه خپله تسلی کړم یارئی بولم … څه یاری د ناتوان او د توانا

یو زمان او یو دم بی له خپل صنم … زه بهتره تر بقا ګڼړم فنا

هر سړے په یوه چارے خدای مشغول کړ … زه خدای مشغول کړم د تو ګو په ثنا

مابی عشقه بل هنر نه ده ناصحه … بخښنده شه که نادان یم که دانا

چه م غوږ په نارو نه باسی حیران یم … پروانه لرے که واره دے که برنا

بی دیار رحم بنه دیدن د خدائے نه ګوره … د رحمان په زړه کښی بله تمنا

که خپل زړه غواړی له جا … خان صیاد کړه د عنقا

د حباب کله په سر کا … سود په آس شه د هوا

کامیابی په عشق کښی نشته زړه چوی کے هر نفس په تشه تشه تمنا · چه د عشق هوسناکی ورته پخوا شی ویر ژړلی کاندی که په تن تنا

لکه خضر هسې پاسه | او به وخښه د بقا
لر زمینه قدم کېږده | پر آسمان لکه عیسا
دهغه استاذ شاګرد شه | چه درو ښيئ کیمیا
داچه ما در ته بیان کړ | که حاصل کړې واړه دا

هاله طمع کړه رحمان
له خوبانو د وفا

دا دنیا ده بې وفا | بې وفا ده بې بقا
نه ئې مخ شته نه ئې څټ شته | لکه لوته د صحرا
په یوه کړي ئې مخ وي | په یوه کړي ئې شا
په یوه کړي دِستاوي | په یوه کړي خما
په یوه کړي ئې درد وي | په یوه کړې دوا
په یوه کړي ئې خوف وي | په یوه کړي رجا
په ساعت کښ ئې بقا وي | په ساعت کښ ئې فنا
په ساعت کښ ئې سکوت وي | په ساعت کښ ئې غوغا
په ساعت کښ ئې خندوي | په ساعت کښ ئې ژړا
په ساعت کښ ئې وفا وي | په ساعت کښ ئې جفا
په ساعت کښ ئې افلاس وي | په ساعت کښې استغنا
چه نه شان لري نه شکل | کله داشي کله دا

خدای خوک پښ مکړه رحمان
په دا هسې رنګ بلا

په بنادی بناد شوی نیم دهیچا | تور تیب سوې یم په غم د هر اشنا

پهغو هنرئې نره راځښر بوور رانه شو یار وریا وطوطا مینا خدای دِ کنګ کاتب حمید پهغه ژبه چه بدې بنکلیو کلا چلنا

کہ زه طمع توقع د بله نه کړم — د بل طمع توقع کیږي له ما

کړم ورور کړم عزیز کړم فرزند دې — واړه غواړې خپله خپله مدعا

په هر کور کښې مخوران رانه پراته دي — لاس مې نه رسي د هیچا په دوا

د دنیا خبرې واړه په دنیا شي — ما به څه کا څوك چه نه لرم دنیا

کہ په کلي کښې مې کور دې زه ګمان کړم — چه کورونه دې دام کور دې په صحرا

چه نه پرې څه پوره وي نه نیمګړې — څوك به څه کا له هغو سره خندا

چه ئې هیڅ بنه نه توبنه وبله سره نه شي — تر هغه آشنا بهتر دې نا آشنا

په توده زمکه استوږنه ده مشکله — څه به زیست شي له رحمان سره د چا

نور خوبان د ستا په څیر نه دي لیدلي ما — نه لیدلي نه به غوږ وا وریدلي ما

هیڅ وفا له عاشقانو سره نه کا — دلبران د زمانې دي آزمایلي ما

چه مې ستا دې بنکلي مخ وته کتلي دي — نور بیا نه دي د بل مخ وته کتلي ما

د زړه غولي مې نیولي دي غمونو ستا — نور غمونه د خاطره دې ایستلي ما

چه مې کار د عاشقۍ په لاس اخستي دې — نور کارونه دي د لاسه غورزولي ما

هم به دام نور غمونه له زړه وواته — چه به زړه کښې ستا غمونه دي کرلي ما

زه رحمان بې یاره خوب خندا نه کړم — خوب خندا بې یاره کله دي پسندلي ما

هسې مست یم ستا د شونډو په شراب — چه به نه وي بل د اهسې مست خراب

لاس دې ستا په مینه آچوم وګلا ته — لکه بوټي ته د لاس آچوي غرقاب

دا سرخي او سفیدي د ستا د مخ ده — که خما په مخ باران دي د خوناب

څه اثر به خما او بنې په تا کاندې — لا تازه شي او ریدا او سوډ کباب

لہ شیخی راته بهتره شوه رنځ بیا ناصحانو دې په سر رانکړه غوغا بیا بنه چه خلاص شوم د پیاله نشه زهد خدای [illegible] د رانکړه داهسې خود پسند بیا

عاشقان دِ ستر‌ګی روښی کا پهٔ عشق
داخوب نه دی دا منزل دی د سیلاب

ماچه خال د ستا د ورو څو میان ولید
نه بل هسی رنګ امام شته نه محراب

ښا پیوی چه لیده نه شی سبب دا دی
مخ د ستا له شرمه نغاړی په حجاب

چه صبا شی ستا تر مخ پورته شر میږی
څکه زیست په نوره شپه کا مهِ مهتاب

حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو
چه تحسین کا ستا په دور کښی د آفتاب

هسی نه چه زه دلبر وایم و تا ته
خدای دِ تا لره درکړی دا خطاب

ستا د مخ په ورق پاندی خط و خال دی
د مصحف په صحیفو پاندی اعراب

ستا د حسن حساب هیڅ را څخه نه شی
هم په دا چه بحساب دی بحساب

یو کتاب په سر پر ټن کښی چاونه کړ
بی رحمان چه ئی کړی دا کتاب

چه لی ولید د ستا حسن بحساب
له دی قصد تاو ییل نشته آفتاب

په آرزو دِ د نرګس ستر‌ګی شلور شوی
غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقاب

ستا په غم دِ ستر‌غلی سر سر باغی شوی
یا خیمی د سپیه پوش سره طناب

له د زلفی په مخ پیچ و تاب شوی بنائی
و لیښته څه طاقت لری دا ورله تاب

زه چه خدای د ستا له غم سره آشنا کړم
خوشحالی هم بونایاب شوه نایاب

ستر‌غلی مِ دِ فراق په زړا سره شو
د سبزِ اثر لی پاخیدِه له آب

هم خورشید چه دِ بنائست پور تر میږی
څکه مخ پناه کِوی تر کوه قاب

زه دِ پیژنم په اصل کښی خاکی ئی
څان به څوځنی په کونی له تراب

څو دِ خیال د آشنا ګرزی په لیمه کښی
خبر زده کړه تر داو بنو له سیلاب

د رحمان په بخت هاله خوب ویښ شی
که تهٔ ستر‌ګی ورته پور ترکړی له خواب

ورقونه لیتوم د هر مکتوب
په کښې غواړم خال او خط خپل محبوب

یا تنور دې یا دکان د آهنګرو
چه په عشق کښې تصور کړم د خپل قلوب

په خندا خندا خان آچوي پر اور ته
خدای خوړ مکره په جذبه د عشق مجذوب

زه چه غم د مهرو یا نور ایزره کړم
له دې غمه لا په شي زړه راڅخه دوب

کوره عشق څرنګ آساني کړ عاشق ته
دا مشکل مشقتونه د ایوب

په ژړا ژړا تر هسې حده راغې
چه څان ورونه کړ یوسف پسې یعقوب

عشق دې دا چه معشوق شوه و عاشق ته
بنده رخسار د مهرو یا نو په اسلوب

هغه څه پو شبې له هجره له وصاله
چه پخپله هم محب شي هم محبوب

چه نظر ئې له صورته په معنی کړم
و رحمان و ته یکسان شو زشت او خوب

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب
را ته هیڅ شي خپل یا لا شي خپل تربیب

مګر خود پخپله خدای د چا طبیب شي
ګنې زه نشته په جهان کښې بل طبیب

را څرګند دې سود او زیان د رقیبانو
که خدای نکا نه خپل یار د چا رقیب

چه خپل یار د چا رقیب شي دلیل دا دی
لکه څوک چه په وطن کښې شي غریب

چه غریب شي په وطن کښې فرق نو دې
که فرسنګ ئې وي تر میانه که جریب

ما په عشق کښې هیڅ حاصل نه کړه غمې
هر چه وائي وا ره بنده وائي ادیب

دشمن هم د سړي کله کله دوست شي
دوستي نه کړه له رحمان سره حبیب

کړم روښي له دلبره ملاقات
پا به نه ختم له دې دره په حیات

پس له دې م د استوګنې خدای نصیب کا
په دا در کښې که حیات وي که ممات

بنائي دا که زه خپل یار و ته سجده کړم
هغه یار څما قبله دې د حاجات

وا به نه وي هم مخ له رساده دو که د خطا ده م لیدو دي په رښتیا له رقیبه آزادي شوم د سرو د ګلي پیغمبر په مخ بنده سره دي پیدا

دخپل یار تر لعلو لبو به ئے زار کرم — که شکر وی که قند وی که نبات
دا ښما د یار جلوه ده چه لیده شی — لکه نمر په صومعه او سومنات
تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دی — چه خبرے کا د کشف او کرامات
دریا له زاهدی ښما توبه ده — چه ئی کاندی ځوك په رسم او په عادات
په وروځ پند او نصیحت وائی ربلته — په شپه ناست وی د مغان په خرابات
دین ئی دام وی د دنیا په لار کښي ایښے — په را آوړی وحشیان د مخلوقات
دهغو په لور ئی سترګی وے ختلے — چه په لاس ئی سر ساینه وی یارکات

زه رحمان له هسے خلقه پناه غواړم
هرچه لاف کاندی په خلاف د مقامات

تا چه په دا تور و سترګو و کاته وماته — ذره ذره د ښما تورکړلی دے نوره مخلوقات
ما خو چه تر ولیده هغه ستام عشق و وے — نوره م به مینه د ذره ذره نه شي له تا مات
شیخان او زاهدان چه نصیحت وائي و ما ته — نه دی خبر شوي ستا د مخ له محسنات
خه شو کړه زه انګشت نما شوم په ستا مینه — لا تر ما نه خوبن ئی و قاضی و هم ملات
مرم په دا چه مال تا جاري سي هغه خلق — بیا د دیر د دین تر ما ور نه نی غلی خوات

زه رحمان چه و وینم یار و وایم خدای خیر کړی
کده بنا یرے ده د بنی آدم له ذات

آفرین د عاشقانو په همت — چه په عشق کښي ئي اندازو ئي د جهت
نه ئي هیچری تغیر نه ئی تبدیل کړو — له تمام جهان په پروائی ملامت
که ځوك سل نصیحتونه و ورته کاندي — غور نه ئي نه وی د هیچا په نصیحت
چه په یار پسی تر ښان تر جهان تیر شی — ځوك کولی شي دا هسی مشقت
که تمام عمر ئي یار په سترګو ناست وی — تمام عمر و ورښکاريږي يو ساعت

چې ئ زه په دوهنې پند پورې خندا کرم ناصحان په نصیحت کړه ریشخندي بیا دا دعشق تاووني رنځ بدې ارمان شي که د زهد خاکو نه شي زو تنه بیا

| | |
|---|---|
| کدیو دم شی هغه یار ور تخه لرے | هغه دم شی ور ته عمر د قیامت |
| که دوزخ لره د یار په میند ور می | دوزخ هم ور ته جلوه کړی د جنّت |
| د عشق لار د توکّل په پښو غوښے | نه په پښو د ریاضت او د یانت |
| په تلاش او په تدبیر کله موندہ شے | چه موقوف وی هغه کار په عنایت |
| د عاشق خاطر له غیره پاکیزه وے | د دریاب په مخ کښ نه وی نجاست |

خدای چه زړه د مطلوب کاڼی کړ رحمان
کاڼے پریوت د طالب په عمارت

| | |
|---|---|
| چه وبلی مِ لِتا دے واحدیث | سر نامه د هر آشنا دے واحدیث |
| چه آغاز م کړه په مدح د خوبانو | شکر گنج بی بها دے واحدیث |
| په ثنا د دلپسندو دلربا وُ | دلپسند او دلربا دے واحدیث |
| لکه باد د صبحدم چه غنچه وا کا | هسے رنگ دلکشا دے واحدیث |
| چه اوصاف د سرو شونډو په کښن راوړ | خوږ تر قند او تر حلوا دے واحدیث |
| نه پوهیږم چه او به دے د حیا تو | که نفس د مسیحا دے واحدیث |
| د غونډه بو شاعرانو د خولی نه دے | شکه هسے رنګه صفا دے واحدیث |
| سنا و مخ ته که څوک شمس و قمر وائی | دروغ نه دے په رښتیا دے واحدیث |

که څوک وائی چه چا کړی واحدیث دے
رحمان وائی چه خما دے واحدیث

| | |
|---|---|
| چه بر هم کا عاشقی د چا مزاج | حکیمان ئی درمانده شی په علاج |
| په آشنا پسی تلل ژاړی په دوه سترګو | دا و به په ځای خوناب کاندِ اخراج |
| د وار ولاس ئے وی له دواړه کونه و ملے | ډوب وی تل د عاشقی په امواج |
| په هغو کښن چه څه بوے د عاشقی وے | په کښن نه وی بوی ذ رسم او د رواج |

دکتبی ئی د زړه تر صبر کړه ناصحه لر دندی الثناء سره حمید شه سو کښنه بیا عاشقی په اسلام راولی ترسا پارسائی کا کهوده د پارسا

ابراهیم ادهم خه هسی نادان نه وه ... چه نظری یا په تخت وه یا په تاج
مجنون هسی رنګ مین په لیلی نه وه ... چه په نورو ئی موقوف وی احتیاج
لیونتوب له لیونو نه تلونی نه دے ... که ئی راج په خوند ورشی که تاراج

کدئ سر لکه منصور غنډ په دار شی
دغه دار دے و رحمان وته معراج

چه خبر شوم د ساقی د جام له راح ... لکه مرے ملاقی شوم له ارواح
زه چه زلفی د یار وو نیم په خوب کښ ... په شپه مشک را بانډ وو ورے ترصباح
صبا زیری د وصال په مهجور کاند ... د هوا خبر مونده شی له صباح
که روا کا خون خوردن د عاشقانو ... څوك و تی شی د خوبانو له صلاح
هر ساقی چه جام د عشق لرے په لاس کښ ... داپیاله ئ په مستانو ده مباح
محبی میني که څوك ستائی ستایه نشی ... د ممدوح له قدره چازده بی مداح

د دنیا ناوی په عقد کښ دین غواړے
ای رحمان خان ترڅ غوره له نکاح

چه پیدا شو سنا چشمان داهسے شوخ ... نور به نه وی مردمان داهسے شوخ
کجی زلفی کج ابرو لکه چه ستا دے ... نه لرم شته نه ماران داهسے شوخ
دیر غمونه شوخ شوخ شته دے جهان کښ ... ولی نه لکه هجران داهسی شوخ
مکر دیو وی چه بیغم وے په هجران کښ ... ګنړه نه به وے انسان داهسے شوخ
دا فتنی او فساد و نه به وو چرے ... که پیدا نه وی آسمان داهسے شوخ
دا آشنا د غمه زړه د آشنا نه چوے ... آفریده که چه خدائے جهان داهسی شوخ
چه یوسف ئی د دنیا په متاع ورکړ ... پیدا مشه بل کاروان داهسے شوخ
چه بوسه له یاره غواړے بے ادب ... خدائے دنکا نه رحمان داهسے شوخ

سل توبی کا د زاهد په تندے ماتی ۱۲ بری ئ نږدی په شیخی کښ ساویسا ناکردی د محبت ۱۲ وسری ورکه پریوه لاس کښ پیاله په بل عصا

بادشاهانو که قصرونه کړه آباد
نوم د کوم یوه بادشاه هسې یادیږي
عشق عاشق لره یو هسې پیر استاد دے
د غه واړه کرامت د عاشقۍ دے
د دنیا چارې همه واړه فاني دي
لکه سوري چه د نمر په مخ کښ ګرزي
هیڅ وفائی له هیچا سره و نه کړه
که جمشید وه که بهمن که کیقباد وه
رسولی ئی تر مراده هیڅوک نه دے
نه چا ختم نه دعا ور پسې وکړه

ما د عشق عمارتونه کړه آباد
لکه نوم چه د مجنون او د فرهاد
چه بد نه وي بلا دا هسې پیر استاد
څوک قطب کا څوک غوث کا څوک اوتاد
څوک به څه کا په دا چار و اعتماد
نه استوږه نه چر تر کا نه نه استاد
که جمشید وه که بهمن وه که فرهاد
که نمرود وه که فرعون وه که شدّاد
همه واړه هسې پاتي شو نامراد
که ئی آل که ئی عیال وه که اولاد

زه رحمان د زمانی له جوره دروم
خپل صاحب لره په داد او په فریاد

که قاصد ئی د مقصود
هر چه در شي ستا په مخ کښ
هر چه د سوي له خدا
رضا پاسله و قضا ته
و هستئ و ته جلوه کا
نه و ځان و ته نظر کړه
نه د ارچي د خپل صورة
امتي د ابراهیم شه
د غفلت له خوابه پاسه

آواره کړه ځان او سود
واړه و کړه بهبود
همه و شمیره نابود
مدام خوښ او سه خوشنود
لکه ابر هسی دود
چه قبول ئی که مردود
چه مسلم یی که جهود
تابع مه شه د نمرود
څو به او سی خواب آلود

ردیف الدال

د پیر هیر پخته کاری شوه دا تر خام چه د عشق پر زورمندی شوم شناسا د آشنا هجر هسې سخت ساعت دے لکه راشي پر واتر د صورة سا

مقید او مشغول او وسه — په دعا او په درود
آسمان طور په رکوع شه — زمین طور په سجود
هر اشیا د حق ثنا کا — په نغمه لکه داؤد
که بیدار شې خود به وا ورې — په هر لورې دا سرود
که ایاز شې بندګي کښ — نور به ناز کړې په محمود
هر اسباب د بند د بد و — مهیا دې هم موجود
که دانائي و بله بیل کړه — فرموده او نافرمود
خو سپند نه شې په اور کښ — نه ورې شخوند او بوې د عود
ځان له ځنه پاکیزه کړه — لکه بحر نا معدود
هلاک ځکه شه رحمان — چرته پاک نه شه داوجود

## د رحمان بې یار له ذکره
## نه ده بل ګفت و شنود

زه که لاف د وفا کړمه هر چند — هغه یارم باور نه کا په سوګند
زه بې یاره هسې زیست کړم په جهان کښې — لکه زیست وي په مجمر کښې د سپند
آبروي د طالبانو خپل مطلب دے — آبروي د غلامانو خپل خاوند
لکه یارم سربلند دے په جهان کښې — په تاثیر ئې زه یم هسې سربلند
لکه یار چې مې خرسند دے په جهان کښې — زه هم په دا دور کښې شوم خرسند
چې مې مدح د خوبانو کړه آغازه — هر کلام مې د لپذیر شه دلپسند
لکه شخوند لري ځما خوږ خبرې — په شکر و کښې هم نشته هسې شخوند
هغه قند چې خدائے ځما په خوله کښې ایښود — حلوایانو ځنې نشته هسې قند
لکه زه چې سخندانو هنرمند یم — بل به نه وي سخندانو هنرمند

سم قامت د هغه یار راغی پیخواکښې که هسا برلاس کښې د اغلر د موسا
زه حمید کبروکتو د تر کوغوخ کرم پنصیب خطا که ذار لوري رسا

په اشعار کښې قوت ناک لکه مزري یم
ولې نه یم د مزري په څیر ګزند

هم په مدح هم په هجو بند پوهیږم
ولې نه یم په داچار و د بوخوړ سند

بې له عشقه که م عیب که م هنر دے
ما غوځ کړي دے له ځانه بل پیوند

زه عاشق یم سرو کار مې د له عشق
نه خلیل نه داوزي یم نه مهمند

چه و ما ته نصیحت که څوک په عشق کښې
ګویا پلار ته نصیحت کانړ فرزند

هر سړے چه آئینه په لاس کښې خاندې
ګویا کانړ په خپل ځان پورے ریشخند

رنګ ریزان د اول خپلی بزیره لک کا
بیا هاله دوے رحمان ته وائي پند

ستا په عشق کښې هسے خلاص یم له شعور
چه یوه خبره نه لرم منظور

طبیبان وائي چه صبر د دارو دے
خدای خمونږ فرقه پیدا کړه ناصبور

تورے هر چرې تړلې په دشمن شي
یاره ستا سترګې دوستان وژنې بې تور

معشوقي د زمانې شوے سره تولې
د زړه خونې ئې ولوټلې بې صبور

زه تنها په ضرور نه یم ستا له غمه
پیدا شوے عاشقي ده له ضرور

هر شپې له ورځ شته دے په جهان کښې
څما عمر جدائي کړله بے نوره

مهرویان وفا له هیڅا سره نه کا
دا خبره په عالم کښې ده مشهوره

چه خبر شي واره کوتي په غابښ شي
په هجران کښې چه خبر شي له مهجور

د رقیب له بده وستر ګو ځان زغورے
هر عاشق چه بهرمند وي له حضور

همېره توان توفیق نه کړم په بخت کښې
چه تائب کا ما له فسق له فجور

په نظر د مدعیانو تور کودي دے
که ئې کښېنوي د کتې د یا سره حور

د رحمن د سترګو نم به هاله وچ شي
که وچ شوې دریا نم وے له ناسوره

تماشا د ګلشن څه کړم بې تا
یاسمین و سمن څه کړم بې تا
[illegible] څه کړم بې تا
نرګس سترګې لیمه چه ته نه یې
نظاره د چمن څه کړم بې تا

هميره اوښي مې بهيږي په رخسار
چه غرقاب مې گريبان دی هم کنار

هغه يار مې هسې ناست د زړه په سر دی
لکه اېښې چه چا گل وي په دستار

که څوک وائي چه مار کله په کټ خيژي
زه خوړلې يم په کټ د زلفو مار

خود يار بيمار ستر گي خدای خونی کړه
گنړه خون کله کولی شي بيمار

که په دار شم زه د يار له لاسه نه يم
سرو قد دی خما يار او خما دار

بس که دا چه زه په يار پسې غوغم
خدای دې نه کا لکه زه يم هسې يار

هميره جور لکه يار چه ما سره کړه
ياد مې نه دی هميره جور د اغيار

دلبران کوي جادو کړي زړونه آخلي
هغه وايه چه ټب کوړه وي دلدار

چه د زړونو له نما نخلوبي پرواه دی
تروکه زړه د سر پوسي خديکار

په گريبان ئي تل د اوښيو باران اوري
نه ورکيږي د رحمان د زړه غبار

چه د زړه دی پرتلې استوار
دا جهان دې د نيکه دی که د پلار

ته خپل پلار او نيکه وگوره چه څه شو
هسې ستا دې هم په دوی پسې رفتار

تل وروني دوروستو پلا دې پرتيږي
کړي نه دي چا په پل باندې قرار

هسې نه چه زه يوائې تا ته وايم
راغله لاړه ستا په طور صد هزار

دعوه مه کړه په ناحق خپل به دي نه کړي
پردی ملک پردی نهي پردی ديار

چه استوڼ نه په پردي وطن کښې کانه
هغه نه لري هيڅ واک واختيار

که هزار قسمه وخوري په يو کار کښې
نه کا څوک په مسافر و اعتبار

چه په صبح شگفته شي په شام دړي
څه اميد دی د گلو په گلزار

که د دوه ورو کړه د عزيز که د يار دی
مړئ وورور مړی عزيز کنړه مړه يار

چه پيدا شي هغه واړه فنا شي
ای رحمان دا جهان دای کار

چه هر لاره کي سري سکروټي پر لښې سوځم صرف د يو غم هم کور خوند کړم خوندي نه شي هغه لاره د نغوار کي فردوس ښکي ديدار ده گوره وړي وطن څه کړم خوندي نه شي

څو جفا قبوله نه کړي د اغيار ... و به نه ويني په سترګو مخ د يار
چه اوّل ئي خار زر غون شي په پهلو کښ ... غنچه هله شګفته شي په ګلزار
جنّت چا په رياضت موندلے نه دے ... ولي بويه هر بنده لره خپل کار
که موندے شي خوشبوئي په خوشحالي کښ ... پروت به نه وه په چند نه بانډ بنامار
آب تر لعل و د لالو ګلو نو وړ دے ... بخت د دا چه څوك عزيز کا نه څوك خوار

**هسے زيب کا په بياض د رحمان شعر**
**لکه زلفي د خوبانو په رخسار**

څوك دِ دا کانه قسم په کرد کار ... که درم لرم په کور کښ يا دينار
زه دينار او درم نه لرم په کور کښ ... ولي نور عالم مې بولي د نيادار
هم په دا چه نه لرم خا يه چه تر خوخم ... نه د هيڅ يوه مخلوق يم منّت بار
نه م بشکته ملك ليدلے دے نه پورته ... خبر نه يم په يمين او په يسار
آنجور لکه آسيا په خاي رارسي ... په خپل کور کښ مې سکون دے هم رفتار
لکه ونه مستقيم په خپل مقام يم ... که خزان رابانده راشي که بهار
توکّل م لاس او ښپي سره کړي په نکريځو ... چه پښاي ئي کښينولي يم قرار
چه څما په باب خبر بنکلے دے رارسي ... که رحمت دے که زحمت دے وار په وار
چه هر څو ده هزار قومونه ئي پيدا کړه ... مربّي م دے هغه پروردګار
کار هم په اراده د خدائے موقوف دے ... هيڅ موقوف نه دے د چا په انتظار

**غم به هيچرے وه نه کا په دنيا کښ**
**که څه کيږي د رحمان په اختيار**

که د عشق لاره اغزنه ده هر کور ... د عاشق په ښپو څپلئ دے داور
خار دار ۱۲
که ديدن د يار مونده په انتظار شي ... څما سترګي دے شبنم غونده څلور

چه د ستا چاه زنخ ته نه رسيږي ... د کوم عمر رسن څه کوم بي تا
ستا د در په دوهم پوت قلندر بنديم ... بادشاهي د ختن څه کوم بي تا

تیغ داسپنی محتاج د نرم آب دے — قرب د حلم پویه سله دے تر زور
لہ لوئی لہ سرکشی خما توبہ دہ — خدای خولے مہ کړہ د آسمان نخچیر نسکور
حدے زده څه سودا به پیښه په بازار شے — د بازار خبرے تشی نشی په خپل کور
داهم واړه عاشق لره پیدا شو — له تهمت له ملامت دے که پیغور
جفا ناز و جور و کبر د خوبانو — ما په ځان دے قبول کړی لکه پور
راحت بی زحمته ندے چا موندلے — غم ښادی ده د دے دهر خوراو رور

رحمان هسے په خپل یار پسی غوږ غوږ دے
لکه غوږ په خپل اولاد دے پلار و مور

داخه مخ دے منوّر — چه هم شمس دی هم قمر
داخه زلفی دی مشکینے — چه هم مشک دے هم عنبر
داخه پیوسته ابرو دے — چه هم نیش دے هم نشتر
داخه سترګی دے قاتلے — چه هم سیف دے هم خنجر
داخه شونډے دی میګونی — چه هم می دے هم شکر
داخه سپین سپیځلے غابن دے — چه هم دُر دے هم ګوهر
داخه سیب زنخدان دے — چه هم سیم دی هم ثمر
داخه قد او خه قامت دے — چه هم ګل دے هم عرعر
داخه ملا ده باریک وضع — چه هم مو دی هم کمر
داخه زړه دے د خوبانو — چه هم موم دے هم حجر
داخه یار دی مربو هیبږم — چه هم دل دے هم دلبر
داخه بُت دے خما ربه — چه هم بت دی هم بشر
داخه شعر دے رحمان — چه هم ګنج دی هم هنر

تر څو چې لدما حمید ه راندواید زه په سترګو لیچن څه کوم بے تا نازولی زړۀ دے نه آخلی ادب او د سوړے نخل نه نسی رطب

دغه یار دے دا اغیار
دغه گل دے دغه خار
دا رقیب دے دا حبیب دی
دغه عشق دے دغه عقل
دا هجران دے دا وصال دے
دا طاعت دا معصیت دے
دا عالم دے دا جاهل دے

دغه گل دے دغه خار
دا منصور دے دغه دار
دغه گنج دے دغه مار
دغه غم دے دا غمخوار
دا خزان دے دا بهار
دغه نور دے دغه نار
دا خفته دی دا بیدار

دا رحمان دی دا جانان دے
دا طبیب دے دا بیمار

هر چه نه وی خوار و زار
تر پروني ئې صدقه شه
هزار حیف دے هزار حیف
چه عاشق په عاشقۍ کښه
نه پتنګ د چراغ وې
نه مجنون د عنه رسوا وې

په طلب د خپل دلدار
د هغه عاشق دستار
هزار رخه لا صد هزار
نه حلال لروے نه مردار
نه بلبل د خپل ګلزار
نه منصور د غنه په دار

دواړه نه ګیري رحمان
یا به یار شي یا بیزار

زه عار نه لرم په عشق کښې له پېغوره
دا دی په خوله د سمندر کا مهر د موره
بې هجرانه څما بله خواري نشته

بې پروایم د ستي په څېر له اوره
څوک چه ما منع کوي د عشق له شوره
ولې نشته تر دا بله خواري نوره

وه یو مشر هغه روی پخوا پورې چرئی نه نیولی درس وی نه مکتب په غوجل کښې بار کې خر او قچر بند دے نه پخونه کښې جاهل بلا طلب

لکه نه چه خدای هر گوره ئ بند کړی — زه ئ هم هسے بی صبر کړم هر کورَ

چه په نور او سپینو آړوی دا څوك دے — که ته نه ئ په مخ سپین او په زړه تورَ

د رقیب له بدخوئ نه به خه وایم — چه لا یار ور سره مل شی هلته کورَ

چه لی یوړ د مرګ تر یوره پورَ هیڅ دے — هی تو به له بیلتانه له بده پورَ

عاشقی سړے مجنون کاندِ رحمانَ
کنږه څوك په هو ښیاری ووزی له کورَ

ماچه جور او جفا بیا مونده له یارَ — دو وفا طمعَ به څه کړم له اغیارَ

له د ښنو نه د ښادی طمع څوك څه کا — چه د دوست له لاسه غمِ شی ور دوچار

دا کلهِ هم ډیره ډیره له هغو شی — هر چه طمع تر د ښو کیږے بسیار

دل آزار که دل آزار کړه مانه شے — حیف خو دا دے چه دلدار شی دل آزار

طالبان خو تر مطلوبه پورے پړه دے — خدای د څوك بیوفا نه کا وفادار

که له ډیره حیا نه ګوری وچا ته
څه خومت کړه د رحمان د زړه د یارَ

هسے تله کاندِ وګور تریاران زر زر — لکه د رومی چه خیل ګوره کاروان زر زر

هسے زر زر مرګ په مو ښه شتابی کا — لکه لودیا سه کښت کا دهقان زر زر

هسے زر زر صور تو نه دِی نړیږے — لکه زړی لاله زار په خزان زر زر

هسے زر زر دا دنیا و بله آوړے — لکه آوړی و بله ریګِ روان زر زر

هسے زر زر دا شیرین عمر تیریږے — لکه بحر چه بهیږی روان زر زر

د ښو ختنبل هم هسے زر زر نه وِ یے
لکه د رومی له جهانَ رحمانَ زر زر

چه په زور ور سره نه ئ برابر — د هغو د خنګه مه کښینه زړور

چه سړی انشي یو ناکس په قطار کښې ورانه ورسته حبطه کاندے نسب داسی په ښکلو بدو پلار یادیږی داخبره ی په جهان کښې مجرب

زوراور خواوراو به دی فهم وکړه ... چه ډوب نه شي یاونه سوځي په شرر
زندګي کډ بلي او به بلي اوره نه شي ... تا هم نه دے هیچا ببني په تهتر
خدای ورمه وله سیلاب چا په خونه ... که په قطع هم او به وي د کوثر
ونه لیږي او په کور د هیچا ... که د نږائي وي د شمس او د قمر
چه ئې درست صورت غلبیل شي په اغزو ... ویخوږ مشه د هغه ولي تشر
د هغه دیوال په سوړ څوك کښي منډ ... چه ولاړ وي لکه زوړ نه چاو ډکمر
چه په کیږده دیخ خیبر نخ ئي ورك شر ... که د سرو زرو چاره وي یا خنجر
تاکړده سود وند په برد په جهان کښن ... سود هغه دے چه ذخیره وي نه د شر
واوبو ته آچاوه نشي ځان خوبږد ... ګټه دے په دریاب کښن در ګوهر
چه له آبه له حرمت سره نه وي ... خدای ورمه کړه چا ته هسے سیم و زر
زوراور که رسوي و چاته فیض ... له دے فیض سره و ګټه ضرر
په یاري د زوراورو غلط مشه ... مکر داچه تړده ته لئ زوراور
پړ هر وقت چه د مغلوب وي ته غالب ئې ... تړوهاله ئي قد مونه ږده په سر
یا خو داچه ته قدم ئې په در بږدي ... د غه پیسه ئي ځان و ګټه په در

چه هنر ګټي یاري د زوراورو
زه رحمان کومه بول په داهنر

په نظر د بي بصر ... لکه شام هسے سحر
لکه شام هسے سحر ... لکه سنګ هسے ګوهر
لکه سنګ هسے ګوهر ... لکه خاورے هسے زر
لکه خاورے هسے زر ... لکه خیر هسے شر
په نظر ئي معلومیني ... هم واړه برابر

په سواره بانړي ئې کوتر شي اېښوه چه ئي آس برابونه ځي په جلب ... په زره مهر په خوله قهر زوی نه بویه خه بند واڼي چه ته د به هلته ادب

کہ څوك بنه ورسره کانہ — تربدی ئی وِی بتر
کہ څوك بد ورسره کانہ — ترنیکی ئی وے بهتر
نہ پہ بد ویلہ زهیر بږی — نہ پہ بنه وی د چاذبر
په ثواب او پہ خطا ئی — نه ئی دلیل وِے نہ نظر
نہ آگاه پہ چپل بهبود وے — نه آگاه پہ خپل ضرر
نه په عیب بانہ پوهیږے — نہ پوهیږی پہ هنر
لکہ روند او کونہ چہ کوری — هسے هیڅ نہ وے خبر
لہ طاعت له ګناه هم — څہ خبر وِے ښناور
ښناور و نور څہ نہ زده — یائی خوب وِی یائی څر
داخوته ئی ښما نفسه — چہ دِ کرم زه کور وِ کر
تمام وه وے لہ عقله — په دنیا پسی اوښتر
نہ دِ فرض د خدا ادا کړ — نہ سنّت د پیغمبر
نہ دِ مرګ پہ زړه یاد یږ — نہ خواړی دِ د محشر
اوده پروت ئی داد نہ زده — چہ پہ خوا لرم سفر
پہ هر دم د ره څخه د روے — کہ پوهیږے دا بشی
هغہ تور ویښته دِ ځه شو — چہ هم مښك وو هم عنبر
هغه قد دِ مجنون بید شه — چہ چنار وه هم نښتر
تن دِ درست زیر و زبر شه — زړه دِ نه شه لړ و بر
تر پنځاه و پنځه تیر شوے — تر لا څان بولی پسی
نہ دِ ترس شی نہ دِ ویره — نہ پہ زړه باندِ اثر
بلہ بد نہ ئی لکه ته ئے — هسے شوخ او څیکور و ر

یوسف هاله شه لایق د بادشاهی چه ئی وخوره چیره د غضب — لکه مکس هر ناکس باندِ بوږیږے چہ حمید نرم کوئ کہ شکر لب

پہ غفلت د عمر تیر کړہ ‌ ‌ ‌ نہ دهر و شوے نہ د هبر
عبادت دِ پہ ریا شہ ‌ ‌ ‌ لکہ ډلک پہ لا کو زر
لکہ قلب نا سرہ مهر ‌ ‌ ‌ پټ پہ زړو کښں حجر
لکہ پټ وی پہ دانہ کښں ‌ ‌ ‌ سل اغزی ئی د شجر
لکہ سحر چہ بر پای کړہ ‌ ‌ ‌ سحر کر او جادو گر
لکہ تش صورہ بی روحہ ‌ ‌ ‌ چہ تصویر کا مصوّر
لکہ تش کدو بی مغزہ ‌ ‌ ‌ میان خالی او تن پرور
لکہ زړی پہ میوہ کښں ‌ ‌ ‌ درون سنگ بیرون ثمر
لکہ بی لاسہ لستوڼے ‌ ‌ ‌ سر نړیا یر پای ترسر
لکہ تلک او دعہ بازوی ‌ ‌ ‌ پہ مرغانو کښں ډکسر
لکہ بی نمک نا وے ‌ ‌ ‌ چہ پہ سر کاندِ میزر
ترمیزر لاندِ چا خرِ زدہ ‌ ‌ ‌ چہ دختر دے کہ مادر
نہ ئی حسن نہ ئی جمال وِ ‌ ‌ ‌ غلوی خلق پہ زیور
هی تو بہ لہ هسے فریبہ ‌ ‌ ‌ لکہ زوړ ند چا ودکمر
نیم پہ زمکہ کښں د ننہ ‌ ‌ ‌ نیم بر خیرہ لکہ غر
پہ دستار کښں ئی مسواک ‌ ‌ ‌ تر بغل لاندِ خنجر
پہ ابرو کښں پټ بخړے ‌ ‌ ‌ پہ وښو کښں پټ زور
پہ شیبہ وینی د مظلوم خوړے ‌ ‌ ‌ صبا کښینی پہ منبر
پہ زړہ تور لکہ تبی وِ ‌ ‌ ‌ پہ مخ سپین لکہ قمر
د دنیا پہ طلب کړزے ‌ ‌ ‌ بوسے خان پہ قلندر
کلمہ پہ ژبہ وائے ‌ ‌ ‌ پہ زړہ لہ لوسے باور

پہ طلب کښں د طالب هسے نہ دے مناسب چہ پہ خوب یا پہ خوراک کا یا پہ خوا ئږدے مطائب

په مثال د منافقو
نه مسلم وي نه کافر
حیران ګرزي سره هلي
همیشه رفت وآمد کا
په کوڅي د دنیا دارو
او رنګ زیب هم یو فقیر وه
و توپئ و تړلئ شاکړه
خوئ همېره فقیري وه
چه فلك لئ یاري وکړه
کوره څه چار لئ وکړے
وار په وار ئی تر تیغ تیر کو
یو ته بر د خورم څه وه
تمامي جهان لئ ونغړد
په فریب فریب لئ خپل کړ
بیجاپور او بهالك نګو صه وو
هم لئ هند په دکه وا خست
بیا ئی ذکر شو په زره کښ
له حرص ورته هیڅ شو
خیال لئ داوه په خاطر کښ
باري ورځ ورځي لاړه
نه ئی مراد د زړه حاصل شه

نه مسلم وي نه کافر
نه پخوا وي نه مرور
کوئ په کوي او در په در
د زردارو په ګذر
کوه خوړے کالکه خر
چه توپئ لئ وه په سر
چه قادر شه په افسر
چه څه لئ نه وو میسّر
نور ئی ملك کړه مسخر
په عیال د خپل پدر
د خورم تمام ټبر
ډیر عالم ئی کړه ډبر
چه لاس شه باندِ بر
بیجاپور او بهالك نګر
لاجنجي او جنجاور
هم کابل او پښاور
بادشاهي د هفت کشور
هم دارا او سکندر
چه په خپل کړم ځر بر
وقت په راغی نماز دیګر
نه ئی پخ کړ خپل ټبر

کاه مات دے دخپلو خان کا لښکر کوه هسے غالب جیږو دِ دَهر ژوے پرخان وه نیسي واجب

همکی شو خپنی پاے — کدئی ملائ وه کد لښکر
خالی لا س له دنیا ووت — لکه عین درویږ کړ
له دنیائی هیڅ یونه وړه — مګر شوے یو خادر
خوار حیران پزمکه پریوت — بی بالین او بی بستر
نه پوزی شو تړ د لاندِ — نه تر لاندِ شو لتغر
دبغږی په خیر خفیف شه — چه ثقیل وه لکه غر
دسیلاب په مخ کښ لاړه — لکه خس وِی یا وزر
حق ئی پاتی په کودن شه — دسپاهِی او دچاکر
اوس ئی زه په روح دعالم — کدئی خدای کړه بهره ور
خو تعالی کدئی نصیب کا — هغه شیرین حوضِ کوثر
دجنّت په خوشبوئی — خدای دماغ کړه معطر
په دَر هند بانِدی ځو وه — هند یوشپه وه ادی یونمر
دری نمر په روښنائی — تمام هند وه منوّر
په دبزائی خلقو زیست کړ — نه خه خوف وه نه خطر
خو چه مخ ئی په غروب کړ — نو ئی پیدا شه شور او شر
چه پنا مه داورنګزیب وه — وخوړکا وهغه دفتر
اوس نوبت د شاهِ عالم دے — دور او طور ئی شه دګر
خدا زده خه بازی شی بیښے — عاشوره شی که اختر
رنګا رنګی بازی کاندے — دا آسمان دے بازیګر
کاهی تلخ شی لکه زهر — که شیرین لکه شکر
چه خه وشو هغه وشو — لا به کیږی مقدّر

ماخو نوم داو دنیکو وخست ‌‌ — ‌‌ داحوال دی د هر هر
هر سړی دخپلی خوی ‌‌ — ‌‌ هم بادشاه دی هم سرود
هر چه اهل د دنیا دی ‌‌ — ‌‌ واړه هسې دی اکثر

دا بیان دوړ و دراز وه
رحمان وکړه مختصر

خدای زړه د مهرویانو مهربان کړ ‌‌ — ‌‌ ماله یاره یار له ما سره یکسان کړ
هغه دردچه د آشنا دبیلتانه دی ‌‌ — ‌‌ دفع و رفع ئی د وصل په درمان کړ
ترچه ما منع کړی د یار له لوری ‌‌ — ‌‌ کشکی باد د سحر منع په بستان کړ
غم د هجر چه پیر تر کانړی ابړ دی ‌‌ — ‌‌ له دی غم یم په امن او په امان کړ
کار و بار د عاشقی چه دیر مشکل دی ‌‌ — ‌‌ دا مشکل خما په ما بانډ آسان کړ
حجاب لری کا خما دیار تر میانه ‌‌ — ‌‌ بی حجاب مخ دیار را ته عیان کړ
که مطلب د نور چا نور مرتبی دی ‌‌ — ‌‌ ماګدا په آستانه دخپل جانان کړ
که دا نور عالم و بله خوا ته کوری ‌‌ — ‌‌ ما په نوری د دلبرو نګران کړ
نه به ما منع کړم ته له خپله یاره ‌‌ — ‌‌ نه به کوز په مزکه ستوری د آسمان کړ
زه چه یار له ووځم په هغی لاری ‌‌ — ‌‌ مهتر خضر مهتر الیاس م رهبران کړ
تاریکی د معصیت را څخه واخلی ‌‌ — ‌‌ د طاعت په روښنائی م زړه روښان کړ
چه خما په پریښانی ئی زړه بند کیږی ‌‌ — ‌‌ زړه ئی ماغند په یار پسی پریشان کړ
چه خما په چمن راشی ګستاخی کا ‌‌ — ‌‌ د شبنم په څیر ئی عمر یو زمان کړ
چه آزاده د منکر تر سره پریوزی ‌‌ — ‌‌ د فلك په څیر م توره د زبان کړ
هغه غشی چه د ترکو د غمزو دی ‌‌ — ‌‌ هر کلام م د هغه غشی پیکان کړ
چه کشور د افغانانو معطر شی ‌‌ — ‌‌ د هر بیت مصرع م زلف د خوبان کړ

له یوه دوک وبل ته پورته خیژی مراتب ‌‌ — ‌‌ په طلب کښی د شاهد شی خان جهان څنی غائب

چه هر حرف ئی د نافې په څېر خوشبوي دے ... برکت م په جزدان په قلمدان کړ

الٰهي د خپل حبیب له برکته
دا ساده انشا نګینه د رحمان کړه

ما په تا پسې د اسپین جا رنګ کړ ... ته لا بیا په ما ګمان د نام و ننګ کړ
هیڅ اثر د په سنګین خاطر و نه شه ... که هر څو م مصلے د رسې لنګ کړ
د سوزي به د په نور و ګړي خړ شي ... چه له ما غند مخلص سره جنګ کړ
ته په عشق کښې ما هاله د روغ ټن بو لې ... که یو بل هم هسے ما غند ملنګ کړ
دا ناري سوري غماز دي په عشق کښې ... کنزه تل به د بلبل په څېر پتنګ کړ
د عاشق و معشوقې و ته سپین لار ده ... ته و ما ته د اسپین لار ولې ګرنګ کړ
چه یو دم م له نظر ته یو خوا شې ... دا جهان لکه لحد را باندې تنګ کړ
په بنه خو سره د خلقو افسانه ئي ... خدای خماله کم بختی په زړه سنګ کړ

دا د خوګ له خنکه ناست دے را ته وایه
چه جبر له رحمان سره په جنګ کړ

تا چه مخ د پري ستر ګی د آهو کړ ... نه پوهیږم چه آهو ئی که جادو کړ
دعا ګوی چه د چا و مړی خړ شبا دی ... ته په خړ خما و مرګ وته آرزو کړ
په محراب د عاشقانو کاږي اوري ... ته چه چین د جبین غو ته برابرو کړ
تا چه رنګ د ګلو و اخست زه پوهیږم ... زرغونه به په چهره خما ګنګو کړ
ستا له پره دیره جوره معلومیږي ... چه په ما په خپلو وینو کښې لاهو کړ
که یو څله توره زلفی کړه پریشانی ... خاکستر به په چمن کښې کشمالو کړ
د رست جهان به قاف تر قافه معطر شي ... که یو څله شانه کله په ګیسو کړ
ستا د زلفو مار خوړلے به روغ نه شي ... که افسون د مسیحا ور باندې یو کړ

ګفتګوی د حمید توئ کا کوز په زمکه کواکب ... زړه م ووت د دید د څنګ په هڅه ولې غشي د نظر په بني په چپ

| | |
|---|---|
| لاس او پښې د بې زیوره بنائسته دي | خو منت به د پائلو د باهو کړ |

کم سوزن د بڼو را اوري تار د زلفو
د رحمان د زړه کې زخم به رفو کړ

| | |
|---|---|
| کم د عشق شکر تیری تو کلو کړ | نور لذّة به لکه زهر هسې تو کړ |
| کم دوشي ملاقات د سرو قدو | د فاخته په څیر به کوکې په کو کو کړ |
| عاشقي به تیره توره د رېلاس کا | نور د صبر د سکون په ملک به هو کړ |
| په انصاف او عدالت به نوشیروان شي | هر عمل کم د خپل ځان په ترازو کړ |
| د سکندر په څیر شاهي به د دوی شي | کم سر کوز په آئینه د خپل زانو کړ |
| تریخ لوګي به د دقند په څیر نغم د شي | کم صورة د عشق په او رکښې تما کو کړ |
| و به ندوینې د ترکو بڼې ستر ګې | مکر ځان په خپلو وینو کښې سالو کړ |
| روغ به نه شي بې د یار له بنددینه | کم صل پنځه سپیلنی وځان تر لو کړ |
| د غفلت لیچن لیمه به دبینا شي | کم د یار د کوځې خاورې نن ځا کښو کړ |
| دا دارو تر به دوا کوي طبیب | چه د یار په درد و غم کښې دارو کړ |
| نصیحت په عاشقانو اثر نه کا | دا محنت واړه بې شاید بې قابو کړ |

په رحمان بانډې یاره خوب حرام دی
کم ئې صل باالبنته لانډې تر پهلو کړ

| | |
|---|---|
| کم نظر په ما تو کړه و د روزګار کړ | همېره نه دې چه حسبا او یا شمار کړ |
| په هر غم کښې خاموش او سنا او کم سړي | د بدخواه خاطر به خوښ د دوست آزار کړ |
| صبر نیسه پسې کښې مراد غواړه | په تلوار به هیڅ وند کړ کم تلوار کړ |
| رضا پاسلوه قضا ته فراغت شه | او کم نور څه نور خو وائي ځان به خوار کړ |
| آزادي او کاروبار دې سره لري | لاس له کار او یاره و یاسه که کار کړ |

هوس زاځي زړه هسې لري ژوان شو کم طفل کار موږ هم غیږ کښې اروي ننګي په لاس نیوه د مجنون دینې کم سود د سینه سوی تېغې

خدای و ما ته کلونه د جنت کړل ۔ که دا غونډم په زړه باندې د غم بدې
هیڅ ما نه د ځوک له مستو ستر کو نه کا ۔ کوم یو مست دی چه قدم په لار سم بدې
راحت نه دی بې زحمت چا موندلی ۔ کوم طبیب دی چه په دروغ صورت مرهم بدې
زه هر کوره تر خپل صنم پورې شړیږم ۔ برهمن چه سر په پښو د خپل صنم بدې
و آسمان ته لاس د عقل نه رسیږي ۔ دا خو عشق دی چه په عرش کرسی قدم بدې

زه رحمان ئې تاج کړم د یار له لاسه
کړم پښه په سر د جوړ و د ستم بدې

د دنیا کاروبار کل واړه غلول دي ۔ دا گمان په هیچا مه کړه چه م خپل دي
هیڅ مزه په دا جهان کښې پاتی نه شوه ۔ دیخ سوري په او بو پورې کول دي
پوزه غوږ د غوښو شته په هر چا پورې ۔ که د شرم پوزه غوږ غواړې باطل دي
که د دوه کاسې دانې وې په کښو و کښې ۔ پس له شامه هسې وایه چه د بل دي
که ته یو یا دوه عیبونه د چا شمارې ۔ بل به هسې تا ته وایي چه ستا سل دي
نصیحت د ناصحانو اتر نه کا ۔ د سړي اسپني خوښي تېکول دي

د نا اهل همدمان دي نه پوهیږم
که موچي د رحمان پښې په کوکل دي

هر نګار چه نه وي وفا دې نګار نه دی ۔ په ګلزار کښې چه ګل نه وي ګلزار نه دی
په تلخۍ د میو مست خلق مرخوبه دي ۔ هغه خار چه بو د ګل لري خار نه دی
دینداري دنیاداري د ځنګل لري ۔ ما لیدلي هیڅ دیندار دنیادار نه دی
که روزګار دی په جهان کښې عاشقي ده ۔ د دې نور عالم روزګار د خر روزګار نه دی
چه تصدیق ئې په خپل زړه کښې محکم نه دی ۔ دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دی
په هر زړه چه د خپل یار د غم غبار دی ۔ دعا ابر د رحمت دی غبار نه دی

کوم یو بت د ناست په زړه کښې د حمید چه مدام په پرستش ور ته نسکور ۔ هسې یم د یار له غمه په ضرور ۔ لکه سوی او د لړوني د تنور

چا بہ کسب بی لہ عشق نور خہ ندکړ   باری گنج دی چہ هر یو تہ اظهار ندے
معشوقہ وفا لہ هیچا سره ندکا   گنږه کوم یو د رخصت خریدار ندے
دخپل یار وصال دے حکہ پہ دا دمونده شے   دغہ کار دهیچا پہ اختیار ندے

پہ رحمان بانذِ منّت دمعشوقو دے
دبی حسنو معشوقو منت بار ندے

هغہ ذره چہ خدای روښان کا جام د جم شے   پہ دا جام کښِ ورښکاره تمام عالم شے
پہ آدم کښِ دحیوان خویونہ هم شته   بیا هالہ ئی آدم بولہ چہ آدم شے
چہ خویونہ دچارپایو پہ کښِ ندوے   سړی هوښ پرسے هلہ مُسلّم شے
چہ آغوستی ئی لباس وی دپاکانو   دناپاکو چاری کانذِ خو بدکرم شے
کہ هر څو طعام لذیذ وی مزه ندکا   چہ یوه ذرّه نمک ئی زیات وکم شے
ښادی هر چے دغم پہ اندازه وے   دهغو بہ خہ ښادی وی چہ بی غم شے
هر چہ خپلہ رضا پاسلوی قضا تہ   کہ هر څو پہ ځان ناخوښ وی خوښ خورم شے
عاشقی چہ تر کمالہ ورسیږی   دخپل یار لہ لاسہ زخم ئی مرهم شے

کہ پہ ځان بانذِ قدم کیږدی رحمان
نہ فلک بہ دِ لانذ تر قدم شے

دعاشق خپل یار قرار نہ شے   بی طبیب قراری دبیمار نہ شی
چہ پہ لوح محفوظ کښِ ښکلے لیونی وی   پہ تعلیم د معلّم بہ هوښیار نہ شے
زوی دپلار پہ غیږ کښِ پروت روح ئی لاړ شے   دقضا علاج بہ مور و پہ پلار نہ شے
دهغو چہ خدای کمال حسن روزی کړ   هیځ نقصان ئی د منکر پہ انکار نہ شے
درد و غم دعاشقئ چہ ډیر مشکل دے   هیڅ سړی بہ پہ دا ډنګ گرفتار نہ شے

زه هم عمر له خدایَ دغه خواست کړم — چه دِ یار له خیله یارَ وبیزار نه شي
یار له یار سره جفا کا هسې نه یوه — چه هیڅ فرق ئی د اغیار او د یار نه شي

که هر څوئی دلبري و دل جوئي کا
د رحمان په ترګو هیڅ اعتبار نه شي

داچه مست په میو داغي یار د چا دے — بیا به تاخت کا په کوم غولي دار د چا دے
چه زړه سوی ئي د حرم په صید هم نه شے — دا بې درد و بې صرفه ګذار د چا دی
ما خونه دِي څوك بې وجهې آزار کړي — داچه ما آزار روِي آزار د چا دی
چه ئي د هست جهان د مخ په نړ ازیست کا — دا آفتاب غندِ روښان رخسار د چا دے
چه بلبل ئي رسیدے ترګلو نه شِي — دا د ننه په حرم ګلزار د چا دی

چه هیڅ ترس په زړه کښې نه لري رحمانَ
دا نا ترس و بې پروا نګار د چا دی

په یوه ذرّه به ووړی یا به موړي — په یوه ذرّه به ګرم یا به سوړي
که ځوانِي له خدایَ غواړے ځوان به و مړے — او که پس له ځوانئ پاتِې خو به زوړي
سړے کله خو یا جوړ کله ناجوړ وِي — خدای خوندي چه به تل ترتلَ جوړ يي
عاشقي به دِ آسمان غندِ څرګند کا — که مجنون غندِ هر څو په صورت ووړي

عاشقِي بې جذبې چري دَه رحمانَ
ته مجذوب د یار په مهر کښې بروړي

ورك ورك شه بد کردار و بد سړے — که دِ وړو د که دِ عزیز وِي که پردی
ترهغه لا نیکو کار بیګانه ښه دی — چه بد کردار شي هم چا زوی یا نمسے
لږ کې لوبنِي همواره په مردارو — بد کردار دے سور لنړی یا و بل سپے
هغه خلق به همواره لیونی کا — چه په کلي کښې یو سپې شِي لیونے

چه ئی غم لوه د ترکو لو بیدولم — مورو پلار دوي په هلاک رابانډِ بود — په دربارم د بی قدره و د لبرانو — نشته قدر د مری او د مزدور

بې علاج د لیونیو سپیو نشته / بې له مرګه چه ترړک کاندي ګوهی
حرام خوړ د مخنثو په حساب وي / که په توره یا په تیغ وژلې مړني
مړني ویلې بویه وهغه ته / چه بې وجهي آزار نه کا هیڅ سړی
دیګ ئې اېښې په دیګدان وړنې تر تیغ / چه ئې سوړ په آه سړ دنه شې لغړی
هسې فیض ئې وهر چا و ته رسېږي / چه باله شې د خپل وقت حاتم طې

ای رحمان چه بد فهم و بد کردار وې
راته وایه سېي بهتر دې که سړی

چه وصال د خپل جانان مې دې موندلی / ګنج د دړ و د مرجان مې دې موندلی
همه طمع مې له خپل بخت نه وه / نه پوهېږم چه څه شان مې دې موندلی
که په ډېر مشقت لاس لره خدای راوست / زه خو وایم چه آسان مې دې موندلی
چه مې یو نفس وصال ورسره وشه / واړه اجر د هجران مې دې موندلی
څه عجب دی که تمام جهان څما شي / چه بادشاه د د ړېښت جهان مې دې موندلی

زه رحمان په خپل اشعار شکر ګذار یم
چه دا هسې رنګ دیوان مې دې موندلی

چا چه کړې و دنیا و ته اسرې دي / دهغو په سر همه خاورې ایرې دي
نادانان که د دنیا نه کار نازېږي / و دانا و ته دا وښتې مسخرې دي
چه بې خدای محبت کا هغه خلق / نارینه ئې واړه خزه او ښځې جړې دي
د سپین ږیري و ته مه وایه سپین ږیري / هکې واړه طفلان د کوارې دي
هسې وایه چه شړې دي د زنانو / که ئې اېښې په دستار کښې قرقرې دي
چه نه فیض نه خیر ترې څخه موندې شي / هکې واړه بې فیض ولې بهرې دي
ذخیره د دنیا مه کوه رحمان / دا همه واړه د خاورو ذخیرې دي

خدای ئې نکړي کړنه آچوي شوخ چشم هر ساعت په ملائکو کښې فتور زو په زړه بری سیاهي د خط پښیمان که داد خپه په روښنائی باندې مغرور

آشنائي توره بلا ده آشنا مه شي
جدائي به د فنا کا فنا مه شي

درد و غم به د زړه ولي کا غوځي
ګرفتار په د دواړو غم د جانا مه شي

په زيړ رنګ به د تل سرے اوښي هيږے
د دور ننګو په خير ګل د رعنا مه شي

هم په دا چه د روغږن د خدا دښمن دے
وهيچا نه د روغږن په وينا مه شي

کدا اعلى مرتبه غوازي عاشقي ده
نور هم وا وره اعلى دى ادنى مه شي

همیشه به سر نګون په فکر ناست ئے
د رحمان هسے مشغول په ثنا مه شي

چه په بوره خر پوره ے زړه تري بي خدا ګے
خر په وهيږي چه په ځاى کړ کبي ځاى

داخو نشته چه به تل تر تله پا يي
که بيا پالي خو تر سلو کالو پاى

کډ د سلي کاله شي عمر خو به تير شي
د غه پس بيا به خر کړي راتلواى

سم له لاسه چا دے نه شي مړ د هغه دے
چه بيدا روے و غليم وته لدوراى

ته په اصل کښ سرے بې خاروے نه يي
د چارپايو چارى مه کوه دوپاى

مرتبه به د هيچ ود ميږے شي
زړه په غوړ و غوښو مه تړه هماى

موږ به نه شي نه په حرص بې قناعت
اى په تخت داورنګ زيب ناست ګداى

وراند سراى لره توبه تره رحمان
خوسفر د کړے نه دے له دے سراى

له دى کټ له پوزي خو به ولاړ شي
ترو بيا خداى خبر چه کوم خواته به لاړ شي

په ظاهر صورت خو هسے معلوميږے
چه به حسن غنچه تر پښو لاندے لتاړ شي

دا آسمان زمکه به وے او ته به نه يي
په دوانه و دانئ کښ به و بيجار شي

د بهار د ګلو عمر مدام نه وے
عندليب غنچه به باتي په اهار شي

دریا پیرظهد مه غلیږه زاهده پکار نه دلتی د وینځي زوی لوی خوچه واغندی حمید سرپه ے د وصل ترو کاږی فلک به وینو سود

| | |
|---|---|
| پہ ویلاړ ویلاړ بہ ځان ور پسې ورک کړې | چې نہ وي چہ د تر کو پہ ویلاړ شي |

کہ لیلیٰ غواړې بایدہ دي دا رحمان
چہ مجنون غندې ساکن د کوہ و کاړ شي

| | |
|---|---|
| نہ بہ هرہ کړې غم د سیم و زر خورې | زہ دې هرہ کړې وېنم چہ خپل سر خورې |
| عاقبت بہ دې یو خښہ لہ سینې ووزي | نہ چہ تل بہ هر یو ښاخ باندې تمر خورې |
| بہ عوض ئې کوم طاعت کړې را ندواید | دا نعمت چہ بہ هر شام وهر سحر خورې |
| روژنې بہ څلور م پهر افطار کا | نہ څلور ځلہ طعام بہ هر پهر خورې |
| کہ یو ځل تر کمالہ ور سیر بہ سې | نور بہ غوښې د خپل ځان لکہ تمر خورې |
| کہ بیمند د نام و ننګ دې شي تر سنګ | د هر چا بہ ځګر وي بہ خپل ځګر خورې |
| بې هنرو لہ قند هم زهر قاتل دې | قند ئې ولګېزہ کہ زهر بہ هنر خورې |

نهال یہ زرہ د صبر نخل کړہ رحمان
چہ مدام د برخوردارو بہ څېر برخورې

| | |
|---|---|
| نہ چہ خپلہ بې عقلې هوښیارې بولې | کا ښکې بیا مومې د غوښتو بہ نوخ شولې |
| عشق یو دادې بہ عاشق باندې لہ خدایہ | هسې نہ دي چہ ئې پېرې یا ئې پرولې |
| زلیخا غندې بہ بلہ شیدا نہ وي | کہ د مصر مسور شي وارہ تولې |
| هغہ بحر څہ بہ بحر حساب نہ دې | چہ او بہ ئې خاک آلودي وي خټولې |
| لہ هغو سرہ بہ څہ فکر د یار وې | چہ بہ غم وي د کالہ یاد کهولې |
| عاشقي د نغړي بہ غارہ نہ شي | څو بہ یار پسې واند خلې څلې زولې |
| د وصال بہ نعمتو نو غرہ مہ شہ | چہ ائې ئې خلقې کړې بہ نہ ړہ څمو |

د رګوهر بہ تلہ نہ دي چا تللي
د رحمان شعر ګوهر دې خدائې تولې

په نامه د هغه خدای مړدا بیان دی
هم بادشاه دے د جمله ؤ بادشاهانو
هغه کار چه وهر چاوته مشکل وی
څوک آفتاب شی په آسمان راخیږوی
څوک د نمر په مخ حجاب شی غوړوی
څوک په شپه کښ شی مهتاب پیدا کولی
څوک یو خاخکی پری یستی شی له آسمان
څوک شی روح ننیستی په یوه ماشی
څوک وسنګ شی رنګ د ګلو ورکولی
څوک له خاورو شی یو ګل پیدا کولی
څوک له اوره شی اوبه پیدا کولے
څوک له سنګ شی ګوهر پیدا کولے
څوک شی رزق هر مخلوق ته رسولے
څوک بنده له ایمان شی ورکولی
څوک له زمکی وآسمان ته شی ختلے
څوک له خدای سره خبرے شی کولے
څوک ابنود په نوسن د آسمان زین شے
څوک په سپینه دیره پائی تر قیامت
چه په ده شی هغه کار په هیڅ اند شے
په او بو کښ ئی د کانړو کوټ پیدا کړه
په سجود ئی زمکی سر دے لګولے

چه یو نوم ئی په نومونو کښ سبحان دے
هم د هر یوه سلطان په سر سلطان دے
هغه کار واړه و ده وته آسان دے
ده آفتاب راخیژولی په آسمان دے
ده پټ کړی نمر په ابر کښ پنهان دے
ده په شپه کښ پیدا کړی ماه تابان دے
نزول کړی ده په مونږ باندِ باران دے
ژوندی کړی ده په روح تمام جهان دے
ده وسنګ ورکړی رنګ د ارغوان دے
ده له خاورو پیدا کړی ګلستان دے
ده له اوره پیدا کړی زمستان دے
ده له سنګ پیدا کړی در مرجان دے
دی د هر یوه مخلوق روزی رسان دے
ده ورکړی هر مؤمن له ایمان دے
ده عیسے له ورکړی د امکان دے
ده موسیٰ مشرف کړی په داستان دے
ایښی ده په هوا تخت د سلیمان دے
ده په خضر باند کړی د احسان دے
هر توانا د ده تر توان پورے ناتوان دے
ده ورکړی په کښ اور له مکان دے
هم ئی زوړند په د کوع سره آسمان دے

عاشقی توره بلا نه وه کیمیا وه چه خلاصی ئی نشوه شوه ئی دردی زړه کړه غوټه عقل پری خطای ورغی په دنیا کښی کړنده د عاجزی ترغز

هره ونه په قیام ولاړه هرگیاه ئی په تسبیح سره زبان دے
هم واړه په تسبیح د ده مشغول دي که ملک دے که پېری دی که انسان دے
هر ماهي ئی په دریاب کښ حمد وائي هر مرغه ئی په چمن کښ ثنا خوان دے
حق په حق ئی هیڅ اندَه ثنا کړي نه له هیچا واقع شوے دا بیان دے
مخلوقات و هسے نه دي پیژاندلي لکه ده څخه چه قدر د خپل شان دے
حد پایان ئی هیڅ سړي موندلے نه د معرفت ئی هسے بحر بی پایان دے
نه هیڅوك د ده په خیر د ده په شان دے او نه دے د چا په خیر د چا په شان دے
نه ئی زیان نه ئی زوال نه ئی نقصان شته دی بی زیان بی زوال بی نقصان دے
نه ئی مثل نه مثال نه ئی مکان شته دی بی مثل بے مثال بے مکان دے
پاک ئی وګڼه بی شک بی ګمان له هغه چه د چا شک د چا ګمان دے
نه ئی څوك په سترګو ويني نه لیده شي او بی چون بی چګون نمایان دے
که څوك وائي لیده نه شي لیده نه شي او که وائي و هر چا ته عیان دے
منزه دی له جملو جهتونو او بیا هر جهت په ده باندې ودان دے

له ذرګونو صفتونو راشه ګوره
چه ئی کړي نیم صفت عبدالرحمن دے

هغه دم چه ذره ملال شي یو ساعت ور باندې کال شي
حیران تللي وي په فکر فراموش ئی قیل و قال شي
نه ئی ګفت نه ئی شنود وي په غوږو کونه په ژبه لال شي
نه جواب و چا ته کاندي نه ئی غوږ د چا په سوال شي
علم عقل ځني پاتي دنه صورة ئی خواب و خیال شي
په دنیو سترګو اوده وي لکه نقش د دیوال شي

کمئ سینه کړه غوږو ته شوئ بنکته سپوره خوله به د حریص پر نه شي غوټه داخوږه له سادګی عشق ته هوس کړم کږه څوك بولي بلا په بر ته

قوت یُ وینی دخکو وِی — هم دغه ئی اشتغال شي
دچشمانو له باران — په رخسار ئی پشکال شي
په سبب دعاشقیٔ — تیر ترال وترعیال شي
هم ترآل وترعیال — هم ترمال وترمنال شي
په خپل درد وپه خپل غم کښ — ترعالمَ فارغ بال شي
نه طاقت نه ئی مجال وِی — بی طاقت وبی مجال شي
که ژوندے وِی په جهان کښ — دمرده وُ په مثال شي
په خشکیٔ کښ ماهی کوره — هسے بی تیغَ حلال شي
پاخیږے نه شي له خایه — په زره غوښ په تن کهال شي
دو یشلیو په خیریون کا — له کل خلقو په دنبال شي
لکه خس دلو بی لارے — تر قدم لاندِ پایمال شي
خدای له غمَ سرے ژغوره — بیا لا بو یه چه خوشحال شي
چه دزړه ولی شے غوټی — نو ژوندون ئی په اشکال شي
دباغبان سترګی کا سپینے — چه تازه نخل نهال شي
رویئدن دکشت آسان دے — پرورش ئی ډیر جنجال شي
ویرانِ په یوه دم شي — ودانی په ډیر اشکال شي
چه پلاد ومرِی بیا لا بویه — چه ئی زوئ باکمال شي
څوک خبر دے له دے دوره — چه په ما به پښن څه حال شي
چه په حال کښ ئی حال نه وِے — څه امید په استقبال شي
دیوه ساعت له مخَ — خدے زده څه رنګ به احوال شي
د دنیا چارے فانِی دِی — رفت آمد ئی په یرغال شي

سپیلنی غونډِ پراورد نو خط حسن سر تر پایه سره لنبه شم شند لو خرؑ چه ورو سبو شکلی مخ خط د بخښنی اوس مِ رزړه ورسره کړ ناحق جګرَ

په مثال کښې لکه سورے — خواوشا د هر دیوال شے
اعتبار په او بو مه کړه — چه استا دئی په غربال شے
د بېړو په خښتول کښې — شال شړئ کا شړئ شال شے
که بادشاه د ولایت وِی — کښوولی په لاس کنکال شے
په ثواب ئی غلط مه شه — په یوه ساعت وبال شے
په کمال ئی مه نازېږه — په یوه کړئ زوال شے
د ها تیا نو سودا کړوی — بیا د کاؤ وخر دلال شے
جوهرې وِی جوهر پلورِی — خاورې اغزې کلال شے
کلالِی وکلِ کاری کا — فروشنده د مات سفال شے
په هستئ کښې ئی اشراف وِی — په نیستئ کښې ئی ارذال شے
دخوانئ په وقت کښې شیر وے — د پیرئ په وقت شغال شے
چه مشهور په صداقت وِے — پوچ کوئی واخلِی بطال شے
محتسب وِے احتساب کا — کوتوالِی واخلِی کوتوال شے
نیکوکار وِی نیک عمل کړی — بدکردار و بد افعال شے
سرنوشت د سړی خپل دے — یو عیسی وِی بل دجال شے
چه نیکبخت وِی نیکوئی کا — چه بدبخت وِی بدسګال شے
لاس و پښې د هغه نسه — چه خوشخوئ خوش خصال شے
په هجران کښې نا امید مه شه — خدای قادر دے که وصال شے
په حرامو کښې امید کړه — کُندِ مخ دِ په حلال شے
کافر و باسی له کفر — په یوه ساعت ابدال شے
تور بهتر کاندِ تر سپینو — په سپین مخ باندِ تور خال شے

غمخواره ئی غمخوارګی د کوم کوم غم کا چه پسی شوے په حمید د غم په کړ که د غم په دِبلو شوم ریزمریز ندمِ صبر شِی له ښکلیو ندپرهیز

آرزومند دیوه حس وِی ... خداوند د ملک ومال شِے
چه سیالِی ئ کړی نه وِی ... له سیالانو سره سیال شِے
په دیو عمر منفصل وِے ... په ساعت کښ انفصال شِے
ممکنات به منع نه کا ... که څوك سِل ځل سنبال شِے
چه د خدای رضا شِی پیښه ... رمل پاتی د ر مال شِے

فال به څه گوری رحمان
خپل افعال د سړی فال شِے

هر چه کښت ئی په باران وپه سیلاب وِے ... د هغو عمر به واړه په عذاب وِے
هغه ملک چه په کښ سیند ورود بارنده وِے ... دهقانان به ئی همه خانه خراب وِے
وآسمان ته به ئی سترګی وِی ختلی ... د باران له انتظاره به بی خواب وِے
لکه څوك چه کړوِی ئی په کړهِی کښ ... د هغه ماهِی به طوره به کباب وِے
لابد کله بارانونه پرِ نزول شِے ... چه نخیل و زراعت به ئی سیراب وِے
همیشه له خدای خواست داو بو کانه ... که ئی چه خواست په عمر مستجاب وِے
لکه تل چه ئی په زوند داو بو غوږ وِے ... همه غوږ ئی نه په چنګ نه په رباب وِے
که همه عمر باران ورباندِ وورِے ... لا گومِی ئی په صورت کښ د آفتاب وِی
د گومِیِ و دخشکیِ له دهشت ... د آفتاب په خیر گمان ئی په ماهتاب وِے
داو بو له دیو ډیرے قیمتیِ نه ... لړکِی لوښِی ئی مردار په مجلاب وِے
فوق د پاکو د ناپاکو او بو نه کړی ... که او به ئی کړی وِی په پشاب وِے
داو بو په غلا چه ورشِی نه جار وورِے ... که ساکن د خانقا او د محراب وِے
داو بو په ویش چه ورشِی انصاف نه کا ... که په لاس ئی ورقونه د کتاب وِے
داو بو ثواب ئی نه کیږِی له لاس ... که په کوټ او بو ئی عین د جه ثواب وِے

د جهان زاړو قربان زاړه قربان شه د خوبانو تر بښکلِیو تر مکیز چه نظر په نوخیز حسن کړم د ښکلیو راته هیڅ شِی د بهار د ګلو خیز

د باران امید ئی نه کیږی له خدایه
پلیتی به ئی له تنه څه رنګ درومی
هیڅ ئی مه پوښته له غسل له اودسه
په سبب د ډیر ډیر تیمّمه
د للمی سری په مخ کښی وی آب چره
په آبی کښی لا هم وی خوندیرا
یو به نه ئی هیڅ بری له سری وځه
سم حساب له عزیزانو کله موی
نه طاقت د بد ویل لری نه صبر
نه ئی مرګ نه ئی فتنه له لاس کیږی
چه ئی زیست بائی روزګار په تحمل شی
که یوه بده وینائی له خولی ووړی
هسی شان سری تیری ور باندی وکړی
همسایه ئی چه کار و پوښتانه شی
ملایم ویل اثر ور باندی نه کړی
لکه دیووی د سری یو په صورت شی
په هیڅ رنګ له بدخوی نه جار ووړی
چه اشراف د هسی خرسو په لاس کیوږی
هسی رزق د خدای هیچا له ورنه کا
ترد اهسی زمیندار و هغه به دی
نوکوی د بوه سپی ور له بنده ده

که ئی شیره وورځ په سر باندی سحاب وی
چه او به په کښی نایابی تر ګلاب وی
چه یو څاڅکی پری ګوهر غنده نایاب وی
همیشه ئی سپیره ډیره په تراب وی
هغه خلق چه بی آب وی خوبی آب وی
هغه کلی چه د بل کلی پائناب وی
پائناب سری که زوی د ارباب وی
تل تر تله ئی د بل لاندی حساب وی
لکه مار په ملاو هلی پیچ و تاب وی
لاس تر لی د خپل شرم په طناب وی
همیشه ئی له بدئی اجتناب وی
هغه دم ئی په خپل خان باندی عتاب وی
چه په عمر نه د سوال نه د جواب وی
او په اصل به موچی یا به قصاب وی
چه په زړه کښی ئی نه شرم نه حجاب وی
تر ګمان کوی چه سری دی د دواب وی
هسی مست د چا هلی په شراب وی
تر و خلاصی به ئی له خونه په کوم باب وی
که به رزق د چا په هسی رنګ اسباب وی
چه نوکر د یوه تور کافر کلاب وی
هغه یریږده چه لا نوم ئی د نواب وی

زه د یار مړ او کتو ته حیرانیږم    چه کله راکانه پر مسته لنده تیر
شو رما شورکانه خلوه پرخوا و    چه ورو بنئی جال فتنه انگیز

دخشکئ له غم قوم د رحمان خوښ دے
که رفتن ئی له جهان په شتاب وی

ستا د تورو سترګو په یاد اشترم او ښی وورے
زلفی د سایه کړی مخ دے او په جهان کښیږ
خوګ دے په وصال کښ قند نبات خوګ ځګر خوری
او د ستا د رخسار دے مایه خیلو او ښو بزګو
سترګی م د ستا له خیاله پریوتی وډزه ته
کله رقیبانو نه نظر کړے کله ماته

خو دے که پریوزی په شبرات د غم کښ سورے
هرچا ته چه ګوردم نیم په نزوی نیم په سورے
چاو کړ دین د چا شو سپین د سترګو تورے
تل په آتش سورے ائینه چه نمر ته ګوری
خر شو کرم بی سترګو صورت خی په بله تورے
ستا باران د مهر په ښو بدو پوشان وورے

خان په مستو سترګو باندے غلوه رحمان
دا مستان هوښیار دے له حکمت سره ښوری

ته چه ماته وایی چه په چا باندے شیدا یی
زه په تا پد کومه زیرکئ شم پرولی
زه چه کبر جن دم عاشقئ مرګ د نماکم
خان که ستا په مینه کښ فانی کړم خر تر وکړم
مړ لئ م په تا ولی خدا دے اختر کړنه پو هیږم
خر شو کړیم زه انګشت نما په مینه ستا کښ

زه په تا شیدا یم وایه ته چه یار د چا یی
چا زده لکه تا زده هم وایه چه خر وایی
ته چه لکه وی هم هغه هسے کبریایی
ته چه په دا هسے رنګ له آه بی پروایی
خر د حاصل هم شته که مطلوب په مرګ ښایی
زیات له ماند خوښ ته د قاضی هم د ملا یی

ستا د عشق تر تورے ګلکوئ د رحمان خارښت
دا هم سهل کار دے ښایار کړے پیدا یی

# تمت دفتر اول

په سینه ښاسیده که هزار غشي چه په قهره راته وکوري تیز تیز
په دعا به خپني خدای له غوښته چا که ښکنځل د تو کوي ورے شهد آمیز

# دفتر دویم

بسم الله الرحمن الرحیم

دوباره دِ راتله نشته په دنیا — نن دِ وار دی که دروغ کړی که رښتیا

هره چار چه تر وقت تیره شی عبث شی — عنقا نه دے په دام نښتی د هیچا

تور وخت تیر شے او به بیر ته نه جاړ وو زِی — نه جاړ وو زی تیر ساعت به بیر ته بیا

تیر ساعت په مثال مړی د لحد دے — مړ چا نه دی ژوندے کړے په ژړا

که مقصود لری تلوار کړه وقت کوتاه دے — غره مه شه د دے عمر په بقا

هره نښه چه صحیح کنړی په زړه کښ — په غره ور به هغه نښه کړے خطا

په امید امید لئ خلق نا امید کړ — د ایام له مکره مه شه بے پروا

چه د مرګ په تماچه دِ شی خوله ماته — ترو په ما ته خوله به څه کوے ثنا

ویر ژړلی ارتینی چه وینا وایی — تا تر وایی که پوهیږے په وینا

هلک نه یی چه په زور دِ څوک تعلیم کا — هم عاقل یی هم بالغ یی هم دانا

په عمل د نیکو بد و فهم وکړه — چه په دا کښ د بهبود دے که په دا

سر د نن په کویوان کړه ستر ګی روڼے — ډیر په پوه تر پوه تر مه څه سرهوا

سرهوا سرهوا مه څه و آسمان ته — ته په اصل کښ له زمکی یی پیدا

د عمل په ځای به دا پوښتنه نه وِی — چه ته زوی یا نمسی یی د فلانا

په خپل ځان ښیګړه وکړه غره مه شه — په ښیګړه د آدے او د بابا

ما نوی ښکلا نظر په رقیب باندے وکړی و کړی تر لبی د یالر کړی لب د شکر لب ژبیلی نه دے د رحمٰن ربا په حرص شکر ریز

هغه ناوی چه په خان بنائسته نه وی — خوک لی خه کوی بنائست د مور و نیا
دا خبره زه وخان ته کوم ای یاره — دلګیر همیشه کړم نوم واخست دستا
نوم دستا او د بل آخلم خان ته وایم — نه مې کار نه مې غرض شته په بل چا
هر چه وایم همه واړه خان ته وایم — خه مې کار خه مې غرض دے په نور چا
کړم خاے د دی عمونو وی په زړه کښې — ما به خه لره کوله دا انشا

چه د مرګ سختئ خوارئ دی په خواوی
ای رحمانه ولی نه مرے لا یخوا

هیڅ ثابت نه کړه چا د دی دنیا وفا — واړه مینی کا نه بی وفا په دا دنیا
هر خوک چه دعوے په دا دنیا کا د خپلوئ — واړه باطل وایی دنیا نه ده د هیچا
دا فلک کلال دے سازول و ماتول کا — دیر ئی ماوتا غند پیدا کړ هم فنا
هر سنګ و کلوخ چه حرکت یئ د دی د هر — واړه ګوئ دی خوک د شاه خوک د ګدا
دام دی هیڅوک نه دی د دنیا وره کښې د تر — ښکار به و کړی نه شی د سیمرغ و د عنقا
هر خوک چه له دے فانی نفس وابستګی کا — نه به شی ترلی په زنځیر سره هوا
ماه دے که آفتاب دی عاقبت واړه خراب دی — کل که همیشه وی هسی نه تر ابدا

مه د روم مه رحمانه په خلاف د دانایانو
مینه د دنیا پسند لے نه ده هیڅ دانا

ته چه ما ته وایی چه په خه کوے ژړا — نه دی معلومه دغه خپل جور و جفا
ته جور و جفا کړے زه ژړا کوم دلبره — ستا که دغه نه وی دا به هم نه وه خما
خه ښه ده دے به کاندی طائفه د عاشقانو — رسم د بتانو که هم دا دی لکه ستا
دا خصلت چه ستا دے که هم تل به د عشاق وی — نه دی معلومه دے د درد مند د زړه دوا
نو دستا ناز شه بلا غرور د رقیبانو — واره په واره وژنی کله هغه کله دا

هرچه عاشقي کاکه په قطع افلاطون وي
سپي هم په عذاب د جدائي دوږ لوندي

زه خو ئي مجنون گڼړم که نن وي که صبا
زه خو گڼړ ستا د کوڅي سپي شوم په رښتيا

هيڅ ئي په کار نه دي رحمان تا غواړي دلبر
دا خما رضا ده باقي هرچه ستا رضا

چه ئي نقش نه زړه خيال شي د آشنا
پس له مرګه بدئي تيغ هيسي مخ رو نه دي
په آسمان د آشنائي بدئي مکان وي
خوشحالي خما د زړه په هغه دم وي
روح هغه ساعت داخل گڼړم په تن کښ
نور د هيڅ قيل و قال مي په کار نه دي
هم هغه يوه گړي را بانده کال وي
زړ غونډ کانړه دانه خما د عيش
نه به لا څوک خما طبيب له آشنا شته دي

صدقه ئي سر و مال شي د آشنا
چه آشنا په تيغ حلال شي د آشنا
چه زمين غونډي پائمال شي د آشنا
په هر دم چه زړه خوشحال شي د آشنا
چه ئي دخل په وصال شي د آشنا
چه تر غوږ مي قيل و قال شي د آشنا
چه يوه گړي محال شي د آشنا
چه په زړه مي زر غون خيال شي د آشنا
نه به لا څوک په مثال شي د آشنا

د رحمان نظر په هيڅ باندي وي
چه نظر ئي په جمال شي د آشنا

که نما بنا مر تو ستوني بنکته کړې حلوا
په هيڅ حال کښ د قرار و صبر نه شي
تمام عمر تر آشنا تر عزيز پوري
چه په جلي رسوائي د پروا نشته
چه د نفس د ياره لاس و چا ته نسي
نفس بي شمار عالم پري يست و کوهي نه

صبا خواست کوي له خداي د بنورو
ليوني کړي د ير حرص د يوي هوا
يوي گيدي مختورت کړي هم رسوا
نور به خر کړي په جهان د چا پروا
دا رحمت له خداي غواړي که دوا
خداي د نه کا نابينا د چا پيشوا

چه د بل ننګ و ناموس ساتلی نه شي وی به نه ساتي خپل ننګ و ناموس د هغه عزيز [illegible] کوتاه و چه پيدا [illegible] عزت د کوس

په روا به نا روا کله پوهیږي ... وچارپای ته څه روا څه نا روا
چارپایان که غوږ وسترګی لري څه شو ... په معنے کښې نابینا دي ناشنوا

زه رحمان له هغه علمه پناه غواړم
چه له دینه له مذهب وي سوا

سل ځل که وخوړي ناصحان جګر ځما ... بیل وبله نه کا درد ستا وسر ځما
صبر ستا په عشق کښې دا خبره اوره ځولی ... نشته که د چارے توان یو موی قدر ځما
ستا له محبته چار وانه ځما دروغ دي ... ولي خاوري نه شي په دالار بشر ځما
واره معشوقي د عاشقانو خبر اخلي ... بی له تا چه نه اخلي یو دم خبر ځما
هیڅ اندوه م نشته بی د ستا له جدائی ... نور اندوه به څه وي تر دغه بتر ځما
خوب د کورو کلي به نا روځما بر هم شه ... خجل د چه نه شي ستا په دره اثر ځما

ګل واره جهان که ما رحمان ته دلبر شي
چري دي دلبر بی تا بل دلبر ځما

هسے یاد بی همیشه مدام ځما ... چه اوراد بی په هر صبح وشام ځما
هر کلام چه بی د ستا له یاده وکړم ... سل توبی دي په هغه کلام ځما
بی له تا که ذره آرام کړم په سل ننګه ... نه شي نه شي په هیڅ رنګ آرام ځما
ننګ ونام که ستا په مینه له ما دروے ... ځار شه ستا تر مینی ننګ ونام ځما
چه قایم شوم په مقام د عاشقئ ... هیر شه دلته واره بل مقام ځما
خود عشق په خم خانه لی داخل نه کړم ... پخته نه دے د غه عقل خام ځما
نن د وقت دي که مه آه وفریاد آوړے ... څو چه خاوره نه دے هر اندام ځما
هزار جام وصراحي د فلک مات کړه ... څو به ګرزي په دا دور جام ځما
زه رحمان به دا ناکام ګوم تر ګومه ... وا به کله به حاصل کړي کام ځما

چه هر چا لیدلے نه وي یار ستا
خیر دے دا که وائي بد به کار ستا

هر هغه چه وي دلبر ستا لیدلے
نه به کا انشاء الله انکار ستا

سر ستا درگاه د هغه یار عزیز وي
بی له دے نشته بله لار ستا

ما بی عشق بل څه خیر نه دے زده کړي
چه څه دے هم دادے واړه کار ستا

خدای دي ولیه بل هیڅوك آزار نه کا
ای دلبر ما خله ته آزار ستا

یار ستا په جدائی او په ډیر غم کښته
سیند داو شو دروي په رخسار ستا

لوی هلاك کړي هم واړه ستا جبر دے
گفتگو نشته بله په دیار ستا

زه رحمان بر لاف په عشق څه وهم
خود به ځان څرگند کا انتظار ستا

سر ستا سامان ستا خار شه تر جانان ستا
خار شه تر جانان ستا سر ستا سامان ستا

زبان ستا نقصان ستا واړه د یار هجر دے
واړه د یار هجر دے زبان ستا نقصان ستا

مشك ستا زعفران ستا ستا د کوځي خاوره دي
ستا د کوځي خاوره دي مشك ستا زعفران ستا

گل ستا ریحان ستا ستا رخسار و زلفي دي
ستا رخسار و زلفي دي گل ستا ریحان ستا

فکر ستا توان ستا ستا په غم کښ نه رسي
ستا په غم کښ نه رسي فکر ستا توان ستا

آه ستا افغان ستا هیڅ په تا اثر نه کا
هیڅ په تا اثر نه کا آه ستا افغان ستا

زړه ستا چشمان ستا بی تا هیڅ حال نه لري
بی تا هیڅ حال نه لري زړه ستا چشمان ستا

دا پیران شیخان ستا ستا په غم کښ نه رسي
ستا په غم کښ نه رسي دا پیران شیخان ستا

باغ ستا بوستان ستا بی تا میوه نه نسي
بی تا میوه نه نسي باغ ستا بوستان ستا

وصل هم هجران ستا ای رحمان خیر دي
ای رحمان خیر دے وصل هم هجران ستا

باد شاهي لوی هر یو غلام دي ستا
د خاصانو به څای ناست دے عام دي ستا

پخته کله دی چه لاف دپختگئ کا — پختگان دِی په دے خم کښِ خام دِ ستا

خو هم هره ئی نظر په ننګ و نام وی — چا چه نه دِی آورید لی نام دِ ستا

همیشه به له مقام بی مقام وی — هغه څوک چه لتوی مقام دِ ستا

چه په خپلو و نیو گل غنچه غرق نه وے — و به نه وینی رخسار گلفام دِ ستا

صبح و شام به هغو خلقو باندی یو وے — چه آرزو لری هر صبح و شام دِ ستا

بل کلام ئی به زړه کله اثر کاندی — چه ترغوږ ئی شی شیرین کلام دِ ستا

فراموش کاندی هم نورے مستئ — هر چه نوش کاندی باده په جام دِ ستا

دام دِ ستا د تور و زلفو عالم گیر دے — تنها نه یم نښتی زه به دام دِ ستا

زه رحمان دعا سلام په هغو وایم
هر چه ما لره راوړے سلام دِ ستا

هر چه وو یني په سترگو روے دِ ستا — مخ ئی گوزوی همیشه په سوے دِ ستا

بی دماغ به ترسر و ترمال تیر شی — چه ئی تیر شی تر دماغ بوی دِ ستا

که لوئ گوری خبر بی ځای خوئی نه گوری — چه په دار لگی قامت دی لوی دِ ستا

نو بهار دے عالم سیر د بوستان کاندی — خدای و ما و ته بوستان کړ کوی دِ ستا

د عیسے له دمه دم و هلی نه شم — چه خوله بیر تر شی په گفت و گوی دِ ستا

هم په دام له چشمانو رود بهیږے — چه یاد یږی مِ قامت دلجوے دِ ستا

همیشه ئی زړه په اور باندی سپند وی — و هغو ته چه څرگند شی خوی دِ ستا

دلهم لا شدئی ماتوی په زړه کښ — چه ئی نقش وی په زړه آبروے دِ ستا

و زنځیر و ته ئی څه لره راکاږی — لیونو لره بس دے موی دِ ستا

و کړنگ و ته پخپله خان یری باسی — چه و زړه و ته پرباسی روے دِ ستا

گل لښه شه د بلبل په آه رحمان — نه گوو هیڅ یار په های و هو دِ ستا

۷ کرته سر تحل خمای زه دِ ستا یم — تلونی نرے له ماجست وجوے دِ ستا م

خوی که په دا شان وی دل زار ستا ... خه بنادی به کاندِ طلبګار ستا

حیف چه آوریګے شی لیدی نه شی ... حسن ولطافت پرے وار ستا

بیا دو باره نه ګورے وبل ته ... هر چا چه لیدلی دی رخسار ستا

خدای زده چه ته یار د کوم یوه یی ... هر طرف یاران دی صد هزار ستا

څای د ښوا ښو دو مونده نه شی ... هم عاشقان دی په دربار ستا

بل به هسے نه وی که خدای کاندِ ... ماغند خاکسار وهوادار ستا

بل ګمان په ما باندِ و مه کړه ... عمر واره زه وانتظار ستا

عشق له حسن حسن دے له عشق ... ته ګار څای زه نګار ستا

ته څما مطلوب یی زه طالب یم ... ته څما طبیب یی زه بیمار ستا

ته که تازه ګل د نوبهار یی ... زه یم عندلیب په لاله زار ستا

جور دے که جفا ده که ستم دے ... واره یم منلی دی یک بار ستا

جور و جفا څوك په بها پلورے ... زه یم د جورو نو خریدار ستا

یو تار که ضایع شی ستا د زلفو ... څان به صدقه کړم په هر تار ستا

سل آزمینتو نه دِ را و کړه ... حیف دے چه لا نه شی اعتبار ستا

تیریم زه رحمان له هره کاره
اوس مِ ملا تړلے ده په کار ستا

ته شها یی شکر لب ... ګل رخسار سیم غبغب

په نا درو کښِ نادر ... په عجیبو کښِ عجب

په جمله ؤ معشوقو کښِ ... بو العجب یے منتخب

بی زیور ښائسته یی ... بی ترتیب مرتب

دغه داد دالهی دے ... بی تا لاش بی طلب

آب حیات چه حیا بیا موند — ستا د شونډو له سببه
مخ د سپین تر سپین صبا دی — زلفي تورے تر تور شبه
ستا د مخ عرق داندو — زینت راینوله کوکبه
د بنا ئست مخي د نشته — تر مشرقه تر مغربه
د وصال مونده د ګران دے — مګر فضل شي له ربه
چه د رب فضل پرو شي — هغه خلاص شي له غضبه
دا دولت د خدا ئے پر دا د ے — مونده نه شي له نسبه
عشق څه هسے علم نه دے — چه حاصل شي له مکتبه
مکتب حال د مذهب والي — عشق سوے دی له مذهبه
د عاشق مذهب هم دا دے — چه دم نه وی بی مطلبه

ستا د حسن په صفت کښ — رحمان ګنګ شه له ادبه

په هر زره چه د یار مینه شي غالبه — بله مینه ئی هیڅ نه وی مناسبه
نورے واړه مرتبي بروزنه هیڅ شي — که خبر شي څوك له هسی مراتبه
لیاقت ئی هر وکړی څخه نشته — عاشقي یوه پاید ده عجائبه
د طالب له کوتاهي ویره وکړه — که هر څو د لار کوتا هد ده طالبه
عشق څه ګنده خزانه ده خوار هغه شه — چه څه ګنده خزانه شوه تر غائبه
عزوه خط د مهر و یا نو تر خط نشته — که هزار رنګ کتابونه کړی کاتبه
هیڅ ئی مه پوښته له فضولو له حجو — په هغو چه عاشقی کړه خدائے واجبه
عاشقان تر سر و مال یار نه تیر دے — خدای د دا طائفه نه کانده کاذبه
زه رحمان د خیل صاحب په رضا بسته کړم — څه بکار دی د بنده بی خیل صاحبه

کرم مرګ دے هغه یاد تر پخوا شي لدے کاره پښیماني در پخوا مش دغه غم اندوه مې سر د نافی سپین که څوك له خوا د آهو چشم و جرا مش

لاس مې وتړې د زلفو په طناب
هسې آب ئې د دوه سترګو په تېغ کښې
چه توسن د فلک زین کاندې له نازه
په درګاه ئې درویزه کاندې د حسن
چه په یاد کښې مې سر شو سپین د خیاله
چه دمخ و آب وتاب تې ئې نظر کړم
چه نسیم ئې د زلفو راپیدا شې
چه د سپې آواز ئې واورم هسې خوښ یم
ماومخ ئې کښې ووینم په خوب کښې

بیا مې وسپارې د سترګو په قصاب
چه بې سره په سر ندرې حباب
د اهلال ئې په ځای راشې درکاب
کښې ولې په لاس سپو بې هم آفتاب
له چشمانو مې بهیږې سره شهاب
راته هیڅ شې د ګلونو آب وتاب
دې ست مې دوب کاندې په مشک و په ګلاب
لکه خوک په نغمه خوښ وې د رباب
بارې چرې شې بې یار خوړ دوه خواب

پدغزل کښې خو دوه بیت انتخاب وې
د رحمان تمام غزل دې انتخاب

هر مطرب چه غوږ ئې ناؤ کا د رباب
چه سامع ئې په نغمه پرتاند شم
هم ئې تار هم ئې ګفتار هسې اثر کا
یوئې ساز بل ئې آواز وې دلبستو
ځلورم ئې یو ساقي د سنګ کښیني
دا ځلور واړه فتنې په ځلو و کنج
شپږم وقت د نوبهار او ووم ځوانې وې
چه دا هم په آفتو نه سره لول شې
چه دا هسې دلبران پرې اثر نه کا
راخرکند بد شې پرهیز د پرهیزکارو

پردا ناؤ کښې ځما زړه کاندې کباب
ذیوانه شم ګریوان څیرې مست خراب
چه هیڅوک ئې نه طاقت لرې نه تاب
دریم شعر په آغاز کړې انتخاب
چه ئې ئې نه آفتاب وې نه مهتاب
او پنځم ئې صراحي د مې ناب
اتم شغل د کتاب بهم رباب
تر وخوک ځه رنګ ځن کاندې اجتناب
یا به دیو یا به دیوار وې یا دواب
که قادر شې په شاهد وپه شراب

پروانه شمع خوله پټ ځمر سینه د سپند شې ځمه چشم ځمسر سوا مرشد هم ود دم در بابن نه لرې تا ځم د اجبیلې نلاو هفا مثا مرشن

نه رحمان له ریا زهده پناه غواړم
د ریا زهد عذاب دے هم عتاب

ورځ د تیره په شومې کړه شبه له خوابه
په شتاب شتاب د تلو دے که پوهیږے
دلته دم و قدم د واړه په حساب دے
راستو لے خدای حساب د په کتاب کښ
ته و خپلو نیکو بدو ته نظر کړه
په هغه جهان به څنګه خواب و کړے
عاقبت به تورو خاورو لره درومې
د کاغذ په کشتۍ سیل به کړې تر کومه
چه آفتاب یوه نیزه شي بیا څه کړې

خدای به کله یاد وے خانه خراب
غافل مه شه د دی عمر له شتاب
په غلط دلاری مه زده بی حساب
خبر زده کړه له حساب له کتاب
چه به د څو تیرے ده له ثواب
چه په دے جهان عاجز یې له خواب
خان به خوشحاله په کته له تراب
دا کشتۍ به د مرګی کا نه غرقاب
اوس چه سوری له ور تښتی له آفتاب

په آزار د چا راضی مه شه رحمانه
که خلاصی په قیامت غواړے له عذاب

په ورځ ناست یې بی مطلب
لاس د وخاته له دواړو
نه دلی شوے نه هور شوی
عبادت د په ریا شه
مدام بند یې په سبب کښ
واړه تښی شلو بنی شار بی
ته اوده ور با نه سوری
تن د تښ په توره وسه

په شپه خوب کړې بی ادب
هم له روژه هم له شب
تر مینځ د وب شوے منذب
په مذهب کښ بی مذهب
بی خبر له مسبب
خبر به شوے له مطلب
آس د یون کا بی جلب
آس د داغ کړې بی منصب

د دنیا د مال په تللو دلګیر مه شه مات اغزی د له پښو څخه راووځی
نه هوډ د خدای اسیر و تا د رکړی ته د خپلو اسیرانو اسیر مه شی

دراکب چه والئ پرده شی
له ژوند یو سره ناستیلی
هلک لوی شوی به او بوکښ
لکه کا بزی یا کودری
ناآګاه څان اګاه بولی
مرادله زهد معرفت دی

سود ئی څروی له مرکب
له مرده ؤ مرکب
او به نه پیږنی کب
په دریاب کښی تشنه لب
راخبره ده عجب
نه تش څان وژل اقرب

درحمان شراب له عشق
نه انګور نه له عنب

زه په سل رنګ راغب
دا به څه رنګ شی دلبر
که له جوره دفریاد کړم
که څه وایم نه مِرسی
څه سیالی برابری ده
داسنا مهر محبت کړه
درد و غم دهمره نه دی
جدائی ده ډیره سخته
چه مجنون په خاکندن شه
وصیت ئی رانه وکړه

ته په سل رنګ غائب
چه زه مست یم ته تائب
دا هم نه دی مناسب
زه مغلوب یم ته غالب
د مطلوب او د طالب
خدای په ما بانه واجب
چه ئی وکښنم په کاتب
دارواح او د قالب
زه ئی پریښودم نائب
په څو رنګ عجائب

چه روزی دشه رحمان
څماواره مرا تب

که د عقل څه اثر لری وسر ته
لاس به سر مه شه دهر ګلی وددر

نه دی نس له جلب ورکولو اموخته دربانه غلو کاسیر مش چه نه سوی دیوه داغ چه نه دزرو ددنیا د دیرول په تدبیر مش

ردیف التاء

په نظر دهغو خاورې سره زر کيږي
هر چه ندلري نظر و سيم و زرته

بې منت جام د زهرو ښه ښکلي بندي
نه هغه چه منت بارشي و کوثرته

د يوسف له حاله زده کړه د غه پند
وايه حال د زماني و برادرته

دې فلک وچانه هيڅ بخښلي نه دي
چه ئې نه دي راپيرو دي خپې بيرته

دخوار دعوې ئې و کړه ممکنه
که رتي يا جواند به ئې وي درته

که له خدای دي و خلقو ته مخ شي
له فردوس به د په مخ شي و سقرته

هميشه به درپيدر کوزي رټلي
داستوږني ځای به بيا نه موي چرته

دې سست نه منت په رحمان بانه
چه له خيله درتلي نه شي بل درته

چه نظر کرم دغو بانو و رخسارته
آئينه غونه حيران شم و دې کارته

له هشته ئې ريار يو ښنيد نه شم
خدای زده خه به ئې و بلي و ريارته

خلوتيان لکه پرده په کښې خرخيږي
غونئي نه خيږي دحسن و بازارته

ترچه ما پوښتي ديار له حقيقته
څوک ديار خبرې کانه و اغيارته

دږدو غم دعاشقئ خه همره نه دي
چه ئې عقل دچار سي و مقدارته

زه و يار چه خپل غمونه سره شمار کړو
يار و ما ته حيرانيږي زه و يارته

رحمان هسې وزگار چري دې له عشقه
چه غوږ و نيسي ناصح غنده وزگارته

ماد هر غم و هلي دي په لته
دپيالې دصراحئ له برکته

کداو به دي دحياتو په توره کښو
ساده رويو و ماراکړي بې ظلمته

هغه يار چه و ما جام د ميو راکړ
د دښنو ويني مروښي بې شدته

بې خود ئې د دنيا له غمه خلاص کړم
لارم بيا موند ه بيرون له ششجهته

د دښمن په دښمنئ م خدا کېږي
لکه شمع د مقراض له خصومت

بې خبرئ م کل په خېر ده شمېر لي
د زمري په خوله کښې ناست یم فراغت

مو بهتر دي ته هغه چه څوک بې پت وي
په یارئ کښې د خدای نه کا څوک پت

داستی چه په اور سوزي مراد ئې داوي
زه په اور کښې سوځیم نه بې پت

خدای هاله د سرې پادشي چه درد منده شي
لکه نه ده د درد مندې ته عبادت

زه رحمان په سل حلقو د زلفو بند یم
لا د پاس سور پېزوان شه بله نت

ستا په مخ کښې چه حساب د جمال نشت
څکه ما څخه د صبر مجال نشت

ته د سرو د مال وېره په ما مه کړه
وېره ما څخه د سر و د مال نشت

زه په دا سبب له دوېرې سره ربړ دم
چه ستا وېره کښې ثواب دې و بال نشت

که وعده دېوي چارې یو ساعت کړې
د هغې چارې امید م په کال نشت

د شهید و حال ته کوره حال ئې څه دې
بې تا هسې څما حال دې بل حال نشت

روښنائی م د چشمانو ستا دیدن دې
بل دا کور کښې بل چراغ و مشال نشت

په جوبار څما دستر کو سرو ته لي
په دا هر باند بل څه تهال نشت

مخ د بې خط و بې خال هسې زیب کا
چه ئې هیڅ حاجت په خط و په خال نشت

نخا مخ که را ته و ګورې دلبر
په کا ته کښې د ثواب دې و بال نشت

د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال دې
ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشت

ستا په یادو کښې رحمان هسې مشغول دې
چه په زړه کښې ئې هیڅ غم د وصال نشت

مخ ته که د نمر وایم د نمر زلف تار تار نشت
سر و که بستا قد بولم د سرو ن لور رفتار نشت

هر څو له چه د ستا و آتشین رخسار ته کا وئې
پوځ وایې دا ور په مخ کښې د ګود ګلذار نشت

خدای د رکې ستا عفو دې بیا سترګې د لښکر ترکې هم نشي په رحمن په هر زړه و چوي ور رحم جفا کښې نشتار و س به هم نشي

زلفی دِ ناحق خلق بولی په سنبل صنم
ولی چه له مښکو سره هیڅ د ګیاه کار نشته

ماچه غږ په غوږ وستا د درد سیپو واورید
هسے رنګ بلبله په چمن کښ په ګفتار نشته

ستا دیدن هغه کا چه ئی سر په تنه پاس نه وی
ولی چه د سر د ښتن حور وو ته لار نشته

یار به دِ رقیب په لورِی خدائے نه کا رحمان سم
ولی چه د سیپو فرشتو سره خه کار نشته

دوصال شپه مې به په ټیلتون شوه الغیاث
د فیا خوار مت ئے را پیښه په ژوندون شوه الغیاث

ملا طمع دوصال د نعمتونو تر کوله
ناګهان پیاله نسکوره د کردون شوه الغیاث

هغه چار چه مې په لاس وه زه په وینو مې پوهیدے
اوس چه پوه شوم له اختیار مې بیرون شوه الغیاث

دوصال په طمع طوق د جدائی شه را په غاړه
هغه طمع چه خما وه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل پیهی د عشق څوک آخستے نه شی
په دا کار کښ ما نه ملا دا افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان د یار وصال په آسانئ موند لے نه دے
د زړه د روئی مې سره خوړلی په جګر خون شوه الغیاث

یار یادِی را سره نه که الغیاث
نه ئی ترس شی نه لی کر که الغیاث

سرو مال واړه خما و دل آرام ته
نه ارزیږی په کنجکه الغیاث

په حملو حملو مې زړه وړے نه پوهیږم
آفریدی ده که ختکه الغیاث

خو چه زړ کا بِرِی چوګان په مخ د زلفو
ګوی خما دا خراب زړه که الغیاث

بیلتانه ئی پښاور را ته تنور کړ
له خیبر تر اټکه الغیاث

هیڅ سبب ئی موندی نه شی جفا کانه
نه پوهیږم چه په څه که الغیاث

په اخلاص و په راستئ ور ته ولاړیم
یار جفا هم په څه که الغیاث

سل خبرے که له صدق ور ته وکړم
یار یوه را سره نه که الغیاث

چه مې وینی له رقیب سره خاندِی
په ژړا مې لیمه سره که الغیاث

نور قیدون واره سهار دے حمیده خو په غاړه دِ د طمعی نخیو مدش
آهو چشم چرئ زړه په افسون وکیښ هغو سر له ودانئ په هامون وکیښ

زه رحمان مدام دیار په رضا دروم
یار په خپله رضا تله که الغیاث

تا خو زه خما د زړه له احتیاج
د طالب د مطلوب راز به ما د روښود
یار که یار ته حال په خوله نه وائي څه شو
که خما له حاله ما پوښتي حال د دی
آشنائي په ما په کوم قوت کوله
که په ستو کښې یو خواست د جا قبلیږي

نو د م خه پوښتي چه خه غواړي محتاج
که ته نه وې خبردار له دې رواج
و حکیم ته پټ څه کښي وي له مزاج
چه بي تا م رخ نیاره ده تر سباح
که خبر وې ستا د هجر له تاراج
خدای د هیچوک رنځور نه کا بې علاج

په رحمان بلا پسې که زهیر یږي
نه مشغول اوسي له خپل تخت و تاج

په طلب د مهرویانو سرګردان دی خماروح
ستا د حسن و آفتاب به چه سپاره ځان لکه شبنم دی
چه م ستا د جمال عکس لیده په خپل ځان کښې
ستا د مخ د ائیني له برکت خما جان
لکه رنګ د میونا بو چه لیده شي په شیشه کښې
منتظریم د وصال و ګلستان ته تل تر تله
چه حاصله م له حسن روښنائي شوه په طلب کښې

لکه باد د ګل په بوی پسې پریشان دی خماروح
لکه صبح د ذره په شان خندان دی خماروح
هم په دا دائیني خبر حیران دی خماروح
همیشه لکه طوطي هسې ګویان دی خماروح
هسې رنګ په ضعیف تن کښې نمایان دی خماروح
سر تر پای د شبنم په څیر چشمان دی خماروح
شپیږ و ورځ لکه آفتاب لا دروان دی خماروح

ستا په زلفو په رخسار پسې رحمان شبې و ورځ
مسافر د هند و ستان و خراسان دی خماروح

ستا وصال دې را بخښلې خماروح
ستا په مخ پسې م دربست وجود راهي شه

ستا هجران دې را پرو دلی خماروح
له صورت دې و تلې خما روح

انتظار کې د ګل کښي ګوري ډې زړه ستړیدی پسې له باغ پوهوره و کبیس
واقف شناخ الکلمه و په تلوار پرسه کړه له زړه سره د ګل له وروان کیسه

چه هرګز ملک الموت پرِ نه پوهیږی ... هسې شان دې تا وکښلی ځما روح

خان ئې هسې ستا په مینه پسې ورک کړ ... چه هیڅ چا نه دې موندلی ځما روح

که وِی هم بد تا ځنِ وِی که خدای کاندې ... بلا خوانه تللی ځما روح

بلبل نه دې دا چه آوزِی په کلو ... ستا په لور دې آګو تلی ځما روح

چرئې خاوره کړې صورت دِ ستا په ذر کښې ... سر تر عرش دې وکښلی ځما روح

تنَئې پیټنی چه څه دې یا څه نه دې ... نور چا نه دې پیژاندلی ځما روح

زه رحمان له خپله یاره خبر نه یم ... چرئې څه شان دې کوتلې ځما روح

کله شو لا کله خریدار یم ستا د مخ ... تیر سر ومالګ په بازار یم ستا د مخ

بی د ستا له مخ نورمِ هیڅ په مخ کښې نشته ... هسې رنګ نتلی په ننداریم ستا د مخ

هیڅ په ستر ګو نه وینم دا خپل صورت چه کوم دې ... د وب تر هسې حد په انوار یم ستا د مخ

درد و آه و کار بم بهانه د تما کو کړم ... سو لوغړن مدام په ناریم ستا د مخ

نور و ګړی واړه هکی د دنیا کار کا ... زه همیشه غرق په انتظار یم ستا د مخ

شکر چه ئې خلاص کړم د نور خلقو له منت ... سر په سجده اینبې منت بار یم ستا د مخ

هره خوا چه درومِ زه رحمان د ذره په سیل ... بل مطلب مِ نشته طلبکار یم ستا د مخ

ما سحر صباح لیدلی وه د چا مخ ... چه مِ در ستر و ځ وندلیده دِ ستا مخ

دا غو مخ ځما و تا و تر خدای هیڅ کړه ... کمزه هر یو آشنا کوړی د آشنا مخ

دیر مخونه د جفا دِ را څرګند کړه ... لا به کله را څرګند کړی د وفا مخ

خود مرګ په تما چه آوښتی نه دې ... آوښتونی له تا مر کمزه ځما مخ

زه په تا پسې راغلی په دا مخ یم ... که ته نه وی ما به څه کول په دا مخ

په هغو د هوس دو رکی تو له ند کا چه له غاړه ئی زنځیر د جنون وکښی ... بیهوده صحبت م بولی د کړی دغه آه ځماله غمه ګردون وکښی

دیوانګیا

ما بہ څہ لوہ پہ تا پسی ژړا کړہ　　کہ موندی شوی بلہ د ستا پہ څیر یبا مخ

د رقیب طمع مِ نہ وہ ستا پہ در کښ　　پہ جنّت کښ دِ راوښود د بلا مخ

زہ بہ څہ رنګ د رقیب ومخ تہ ګورم　　کلہ اهلِ سنّت ګوری د ترسا مخ

د چکنا چلکی بیلتون پہ نیمہ شپہ وِ　　ستا څما پہ حالہ غماز شہ د صبا مخ

**رحمان** ستا پہ مخ داورانہ دنیا ګوری
خدای بی تا ور څوکنہ مہ کړہ د دنیا مخ

ولی تللی بی لہ ما مدام پہ څہ　　تہ هیڅ لی بی هر صبح و شام پہ څہ

زہ هر صبح و شام دعا کوم و تا تہ　　تہ وما ونہ کوی دشنام پہ څہ

همیشہ لکہ وحشی پہ وحشت ګرزی　　یو ساعت راسرہ نہ یی رام پہ څہ

همیشہ راڅخہ د روی مخ پہ وړاندِ　　لکہ عمر بیرتہ نہ بہ دی کام بہ څہ

راتہ وایہ زہ بہ هم هغہ کوم　　غماز انو تہ بخښی انعام پہ څہ

لہ پرهیز کړہ لہ رقیب خدای دپار　　کہ وی سرہ حلال حرام پہ څہ

**رحمان** ستا پہ مخ بی څنګ وهم مین دی
بیهودہ دِ وړ تہ ګیسو دام پہ څہ

ولی نہ ګوری وما تہ سم پہ څہ　　زیاتوی د غمزدہ و غم پہ څہ

ستا پہ غم کښ چہ ما وینی عالم ژاړی　　تہ وی راسرہ نور عالم پہ څہ

پہ مطلب دِ د سر و شونډو نہ پوهیږم　　چہ م وینی د زړہ خښی هردم پہ څہ

ستمګار چہ ستم کا بہانہ کا　　تہ پہ ما باندِ کوی ستم پہ څہ

مہ کړہ خدای چہ څوک بی یار خوښ خورم وِ　　زہ بہ او سم بی تا خوش خورم پہ څہ

لیونی و پوښتہ چہ حالِ د زړہ څہ دی　　د رحمان لہ ستر ګو څاڅی نم پہ څہ

و دی خپلو برندو ستر ګو تہ دوایہ　　چہ و ژړنی مِ قلم قلم پہ څہ

رحمان خود پخپله گرم یم چه مین شوم
ولی نور عالم مې بولی گرم په څه

کډ څو وایم له هجرانَ وایم څه
لډ دی درد بی درمانَ وایم څه

توان د دم وهلو نه لرم و یار ته
چه توان نه لرم بی توانَ وایم څه

چه ئې وو ینم له ځانَ خبر نه یم
چه خبر نه یم له ځانَ وایم څه

د خپل زړه له حالَ هیڅ راویل نه شي
له بے نامه بے نشانَ وایم څه

د عشق راز چه هیچا نه دے بیان کړے
ترو به زه له بی بیانَ وایم څه

د خپل یار له غم درست په او ښو ډوب یم
له دے هسے رنګ طوفانَ وایم څه

زه چه پروت یم د هجران په تناره کښ
د وصال له ګلستانَ وایم څه

سرو مالے د سرے لوټ کړي زړه ئې یوړ سي
له دی هسے دل ستانَ وایم څه

زاغان بولی بلبلان شړي له باغَ
د دی دهر له باغبانَ وایم څه

هرچه وایم تر هغه وارو بهتر دی
زه رحمان به له جانانَ وایم څه

غم د هسے غلبه شه په ما باندِ
چه مې ځای نه شي د ننه نه د باندِ

له ذکیرو و نه مې نور خلق په عذاب شه
تل د وچو له کبلَ سوزي تا ندِ

زه د ستا په غم کښ شمعَ غوندې اوړم
تر څما په غم کښ صبح غوندې خاندِ

زړه مې ستا په لوړي هسے آویزان دے
لکه زلفې دې په مخ دې آویزاندِ

ما دې ستا د اندیښنو په اور کښ سوے
د دنیا اندیښنې واړه لکه سپاندِ

را دستور دے چه لوی غم په سر مې ورشي
نور غمونه ئې هم شي تر پښو لاندِ

هر چه ما په نصیحت له ناچار باسي
بیا د ستا په لوري درومي له ما وراندِ

سره لښه کوره چه څه کا په وچ ډکي
مخ د یار په رحمان هسے چار کاندِ

| | |
|---|---|
| خه شو که خاموش یم ستا د عشق له آوسرد | ستا خما له میني خلقه واړه خبرد |
| هیڅوك دې په خوله د عاشقۍ لاف وه نه کا | کله هم پېښېږي وچې شونډې ګونه زرد |
| اهل د دنیا واړه نامرد دي رنګ ئې ورشه | خدای دې ملاقات د هیچا نه کا له نامرد |
| کله بې دردانو له زړه د چا ور دردې | زه به صدقه کړم سل لې درد تر اهل د درد |
| بې د ستا د عشق د شهیدانو له خاکه ان | کله نه غونېږي سره لاله له هره ګرد |

یو خوشحال یو که سل خټک نو په طبیعت کښ
خار شه د رحمان سره بې له یوه فرد

| | |
|---|---|
| که خامیږه په تا ده خطا نه ده | که بې تا ده ناروا ده روا نه ده |
| څوك چه بې د ستا له مخ بل ته ګوري | آئینه ئې ناصفا ده صفا نه ده |
| هر عاشق چه په خپل یار پسې ژړا کا | دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده |
| د دنیا په تماشا چه څوك نازیږي | څو هم نن ئې تماشا ده صبا نه ده |
| که ته سل ځل له ما سره جفا کړې | ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده |
| هغه تیر شو چه مېنه په غلا غلا کړه | اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده |

معشوقه که د خپل سر په بها موې
د رحمان و ته دې یاده بها نه ده

| | |
|---|---|
| له اغیار سره خندا خه یکار نه ده | له اغیار سره سودا خه یکار نه ده |
| سل یارۍ د یوه ټل د یاره کیږي | آشنائی د هر آشنا خه یکار نه ده |
| هر بلبل به دې ثنا کا که ته ګل شې | په خپل ځان خپله ثنا خه یکار نه ده |
| عشق د بوې په څیر په پته خوله څرګندیږي | په دا چارو کښ غوغا خه یکار نه ده |
| د عشق درد دواړه عاشق لوه راحت ده | د دې هسې رنځ دوا خه یکار نه ده |
| بدله بد و سره بویه نیک له نیکو | د جفا په ځائې وفا خه یکار نه ده |

بې ژرام کسی سوځي په لیمو کښ داوبو زائیده بائي په اوبو کښ په سرو کښ به خان هره حساب نه کړم خو حساب نه یم د باردد په سوکه

| | | |
|---|---|---|
| عاشقي حرص و هوا دې سره لرې | | د بيمار په ځان هوا څه په کار نه ده |
| عاشقي يو نادر کار دې په جهان کښې | | ولې بې خداى سود اخر په کار نه ده |
| که ئې ګرم هم ئې هيڅ نه کړم سوګند دې | | وابستګي د دې دنيا څه په کار نه ده |
| د دنيا ميند بې کاره او ربه شي | | چه مې وليده رښتيا څه په کار نه ده |

که رحمان په جهان ډير پايم دلبر
زندګي خماڼې تا څه په کار نه ده

| | | |
|---|---|---|
| ګوره بيا به خوك ادا کا په دزه غنه | | چه دا هسې مستر دروې مخ بربنډه |
| نه چه ګل د آشنائي له باغ غواړې | | خبر زده کړه د هجران له خار خنده |
| مار ستم د زړه مائى وليد په سترګو | | چه د يار له جور زارى لکه کنډه |
| طالبان که مرور دې هم په خلا دې | | بې مطلوب د چاند رسې دا هنده |
| د عاشق د لاغرئ سبب هم دا دې | | چه فرق د معشوقو شوه په زړه تنده |
| زه به حور دې د جنت بې يار څه کړم | | خداى د سرو د چاند کاندا هنګ |

زه رحمان د هغه حسن ثنا خوان يم
چه جرګه د عاشقانو ورې پرې بنده

| | | |
|---|---|---|
| چه مې يار وليں په سيمه د اغيار که | | له غيرت مې ليمه شو په خونبار که |
| د غه حق د بلبلانو په جانب دې | | خداى د نه کا منکير ئې په الانذار که |
| زه په وصل کښې هجران هسې پيچم | | لکه خوك چه خالې لاس ورې په بازار که |
| په اميد د زلفو ونښتم په دام کښې | | روهيلي وم ساده دل په هندوبار که |
| د ديدن په ګدائى کښې مې ننګ نه شي | | درويزګريم د بتانو په بازار که |
| د وفا د ملو پانړي په کښې نښته | | کلشکي مه و دې د هر په کلذار که |
| سخت ساعت د سلتانه به مې هير نه شي | | که راد که شي د توبه کو رهنده |

رقيبان راته د يار هر ګوره ډير شو يو سرې خکه د پروسپو پخولو کښې. چه قدم مې د آشنا په کوڅه کيښود د سر سترګې په بيناشوې په ملو کښې

زړه مې بې له خپله نګاره آرام نه کا — که هر څو ئې ګرم په نقش په نګار ګه
که په خوا تر آشنائې بیلتون لیده شوې — هیڅ بنده به د خدای نه وه په دا کار ګه

زه رحمان ئې د فردوس له غمه خلاص کړم
چه په کلي په کوڅه شوم د خپله یار ګه

غمخوارې دا هسې چرې وې غمخور — چه به ما د لته کښېناست لرې ته دور
هغه خدای چه ئې ستا مخ بلد لمبه کړ — ذالنبه ئې کړه څما په کوګل پور
هم هغه دې څما تور لیمه ئې سره کړه — چه ئې ستا لا سونه سره کړه سترګې تور
غلغوغلا د سرو مالو په توره شپه کا — ته په ورځ څما د سرو د مال چور
اصیل نه دې چا پیروده نه پلور لے — ته اصیل په دیدن پیرې هم ئې پلور
داکوم رنګ د آشنائۍ او د وروړ دې — چه زه ستا د مخ ثنا کړم ته مې زور
درخانۍ په سل غمونو خدای آخته کړه — زه به ولې له تا زار کوم که کور
زه وتا و ته د ستا له جوره زاړه م — ته را واخلي سل کلي نا دره نور

د رحمان په عاشقۍ به آفرین کړے
که له مخ په آئینه کړې څان وکور

په هر څای چه ستا تماشې بنیوه کړ — خرمهرې شي هلته دُرّ و مرغلر
د هغو ستر ګو به راونې وګلر نکے — هر چه ستا په کل رخسار و منتظر
هغه کله د ناصح خبرے آور ے — هر چه آوري ستا خوږې خوږې خبر
مرور کاند عاشق له جمله خلقو — معشوقي له هیچا مه شه مرور
په ساعت کښ سرے مړ کا هم ژوندے کا — طائفې دي د خوبانو سحر کړ
زه څان ډوب کړم بې تا په خپلو وینو — کړم ډوب کا څوك په شهد و په شکر
لړ لو غم د واړه را نزدے کړ — چه له مخ د حجاب کړ را ته لر

چه مې نوم دِ ستا د زلفو په خوله واخست — راپسی شوې د بلا توری لښکر

هیڅ په حق د حقدارانو نه کړو هیڅ — همیشه ځما د زړه په ورو منکر

ځما ستا مینه څرګنده په جهان ده — ولې دا رنګه څرګنده ګواهي نغر

زه چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم — د رقیب کړه هم ړولې وِ هم سندر

چه میوې د کابل خوړلي نه وي — دهغو له فهم وتلي شي ګور بور

د پنډو سترګو حاجت د راښکنه دوې — په بېړه ټکي ناوې په څوك څوانې سند

که په غږه په سمه ګرزم بالکه مې نشته — مزړې تا ګرزي په لوړ په ژوړ ۳

[illegible]

ستا په عشق کښې د روغون یم سر تر سره — چه له غمه دِ ړوند ګرزم دلبره

زه به ستا له غمه کله شو لامړوم — باړې دم د خدای په لاس دې نازپروره

شام سحر مې د غم ستا زلفي رخسار دِ — نوز مې مې بوښته له شامه له سحره

چه خبر ئي په وصال و په هجران شم — خبر نه یم له فردوسه له سقره

جدائي به مې بدم په دم قبوله نه کړه — که چا مړل او بیلتون اپيني وي په غوره

یو هنر مې منظور ستا په هنر نه شه — له زه وکړم ستا په عشق کښې سرا هنره

بې د ستا له محنه ورځ راباندې شپه ده — روښنائي د ورځي چرې وي بې نمره

هسې بې سر و سامانه هیڅوك نشته — لکه زه چه بې سامانه یم بې سره

هیڅ اثر د رحمان او ښي په يار نه کا

خدای دِ او ښي د چا نه کا بې اثر

نه رسیږي ستا و حسن و ته حوره — خه به رسي و میرمن و ته مزدوره

ستا تر قده تر قامت نه رسيږي — که ښتره که سپاري وي که کجوره

تر قامت پورې دِ سرو ده سرکوزې — تر رخسار پورې دِ شمع ده بې نوره

هر سړی چه دِ و حسن ته نظر کا — ښاپېرئ ئي په نظر وي نامنظوره

چه تا مې د خپلو شونډو وړ پزوله کړه — طائفه دِ د صوفيانو کړه مخموره

[illegible]

